

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې


مضمون: جغرافیه

مؤلفین: د تعلیمي نصاب د جغرافیه دیپارتمنت علمي او مسلکي غړي

اډیټ کوونکي: د پښتو ژبې د اډیټ د څانګې علمي او مسلکي غړي

ټولګی: نهم

د متن ژبه: پښتو

انکشاف ورکوونکی: د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هجري شمسي

د چاپ ځای: کابل

چاپخونه:

برېښنالیک پته: curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

### اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې د الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کېږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تآسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام ا و د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

**د پوهنې وزیر**

**دکتور محمد میرویس بلخي**

# لړلیک

**سرلیک** **مخ**

# افریقا




د افریقا موقعیت د نړۍ په نقشه کې

په نقشې کې د افریقا لویه وچه ګورئ.

**په دې څپرکي کې لولو:**

- موقعیت او ځلورخواوې
- طبیعي جغرافیه
  - غرونه
  - سیندونه
  - جهیلونه
  - سمندرګي (بحیرې)
  - خلیجونه
  - اقلیم
- سیاسي جغرافیه
- بشري جغرافیه
- اقتصادي جغرافیه
- مواصلاتي جغرافیه

## ددې څپرکي عمومي موخې (هدفونه)

**زده کوونکي دې په به څپرکي کې لاندې موخو ته ورسيږي.**

- د افريقا د لويې وچې له جغرافيايي موقعيت سره بلدتيا.
- دافريقا د لويې وچې له مهمو غرونو سره بلدتيا.
- د افريقا له مهمو سيندونو، جهيلونو او سمندرگيو سره بلدتيا.
- د افريقا د لويې وچې له سياسي جغرافيې سره بلدتيا.
- د افريقا د لويې وچې له بشري جغرافيې سره بلدتيا.
- د افريقا د لويې وچې له اقتصادي جغرافيې (کرنې، کانونو، صنعت او سوداگرۍ) سره بلدتيا.
- د افريقا د لويې وچې له مواصلاتي جغرافيې سره بلدتيا.

**گران زده کوونکي به کولای شي په دې څپرکی کې لاندې مهارتونه حاصل او زده کړي:**

- د افريقا د لويې وچې جغرافيايي موقعيت د نقشې پرمخ وټاکي.
- د افريقايي هېوادونو جغرافيايي موقعيت د نقشې پر مخ وښيي.
- د افريقا د لويې وچې د وگړو ټولنيز او قومي ترکيب بيان کړي.
- د افريقا د لويې وچې اقتصادي حالت بيان کړي.

# موقعیت او ځلورخواوې



د افریقا د لويې وچې نقشه

آیا پوهیږئ چې تور پوستکي خلك ډېر په کومې لويې وچې کې ژوند کوي؟

پورته شکل ته وگورئ. د افریقا لویه وچه د اروپا د لويې وچې په جنوب او د آسیا د لويې وچې په جنوب لوېدیځ کې، د هند سمندر، اطلس (اتلانتيک) سمندر او د مدیترانې د سمندرگي ترمنځ د شمالي عرض البلد د ۳٦ درجو او د سوېلي عرض البلد د ۳٤ درجو، د لوېدیځ طول البلد د ۱۸ درجو او د ختیځ طول البلد د ۵۳ درجو ترمنځ پرته ده. افریقا د ټولې نړۍ د پراخوالي د $\frac{1}{5}$ برخې په شاوخوا په برکې نیسي. په داسې حال کې چې د ټولې نړۍ پراخوالی (د وچې او اوبو په گډون) ۵۱۰،۱۰۰،۰۰۰ کیلومتره مربع اټکل شوی دی او له دې جملې څخه تقریبا په دریو کې یوه برخه یعنې ۱٤۸.٦ میلیونه کیلومتره مربع یې وچه او پاتې ۳٦۰ میلیونه کیلومتره مربع يې اوبه دي.

د افریقا لویه وچه د ۳۰ میلیونو کیلومترو مربعو په پراخوالي سره د آسیا او امریکا د لويو وچو څخه وروسته دریمه درجه لري. په ۲۰۱۷ م کال کې د افریقا د وگړو شمېر ۱.۲ ملیاردو تنو څخه زیات دی.

- د نقشې پرمخ دافریقا د لويې وچې موقعیت وښایاست او ځلورخواوې يې بیان کړئ.

د افریقا لویه وچه د شمال له خوا د مدیترانې په سمندرگي، د ختیځ له خوا د هند په سمندر او سور سمندرگي او د سوېل له خوا د هند د سمندر او اطلس سمندر په گډو اوبو پورې نښتې ده. د لوېدیځ خواته يې د اتلس سمندر دی. د سویز د کانال په کیندلو سره د مدیترانې او سور سمندرگي ترمنځ د اوبو لاره منځته راغلې ده.

د افریقا لویه وچه له څلورخواو څخه په سمندرونو او سمندرګیو پورې نښتې ده او د یوه ټاپو بڼه یې غوره کړې ده.

دا لویه وچه په شمال لویدیځه څنډه کې د جبل الطارق د نرۍ آبنا په واسطې د اروپا له لویې وچې څخه او په شمال ختیځ کې د باب المندب د آبنا او سور سمندرګي په واسطې د آسیا له لویې وچې څخه رابېله شوې ده.




د افریقا د لویې وچې سپینه نقشه

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ټولګي کې په ډلو وویشل شي، هره ډله دې نورو ته د نقشې له مخې د پوښتنې او ځواب په توګه د افریقا د لویې وچې جغرافیایي موقعیت او څلورخواوې ووايي.

### پوښتنې

۱- د سویز د کانال په کیندلو سره د کومو سمندرګیو ترمنځ د اوبو لار منځته راغلې ده؟

۲- د سویز کانال د افریقا په کومې برخې کې موقعیت لري؟

۳- د افریقا لویه وچه له آسیا څخه د کومې ابناء په وسیلې بېله شوې ده؟

سم ځواب وپېژنئ.

الف) د جبل الطارق آبنا　　ب) د باب المندب آبنا

ج) د بیرنګ آبنا　　د) دردانیل آبنا

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې دافریقا نقشه په خپلو کتابچو کې رسم کړي. او هم دې ووايي چې کومو آبناوو افریقا له اسیا او اروپا څخه بېله کړې ده؟

# طبيعي جغرافيه






د افريقا د لويې صحرا يوه څنډه

د افريقا طبيعي نقشه

په افريقا کې کوم مشهور غرونه شته دي؟

پورتني شکل ته وگورئ. د افريقا لويه وچه د جغرافيايي جوړښت له مخې د صافو غاړو لرونکې ده او زياتې لوړې او ژورې نه لري، نو ځکه په دې لويه وچه کې د آسيا او شمالي امريکا په شان لوی خليجونه او ټاپو وزمې نه ليدل کېږي، خو ددې لويې وچې په منځ کې پراخې لوړې سطحې منځ ته راغلي چې شاوخوا او په ځانگړي ډول ختيځه خوا يې په لوړو غرونو پورې نښتې ده، خو په عمومي توگه په دې لويه وچه کې غرونه او لوړې ژورې لږې دي.

**– غرونه**

د افريقا د لويې وچې مهم غرونه د اطلس غرونه دي چې د افريقا په شمال لوېديځ کې د ٤٠٠٠ مترو څخه په ډېر لوړوالي سره د ساحلي موازي لرۍ په توگه چې د ايټاليا د هېواد د اپنين د غرونو دلړيو يوه برخه شمېرل کېږي د مديترانې د سمندرگي او لويې صحرا ترمنځ پراته دي. دا لرۍ د تونس له هېواد څخه پيل او د لوېديځ په لور غزيدلې ده او د منځني اطلس، ساحلي اطلس او کوچني اطلس په نوم يادېږي. د گيني غرونه د گيني د خليج په شمال لوېديځ کې د ساحل سره موازي پراته دي. ددې لرۍ ډېر لوړ ارتفاعات په لوېديځ کې د فوتا جالون غرونه دي

چې د ۱۵۰۰ مترو څخه ډېر لوړوالی لري. د افریقا په ختیځ کې لوړې ځمکې شته چې د حبشې د لوړو سطحو په نوم یادېږي. همدارنګه د ویکتوریا د جهیل په ختیځ کې د ختیځې افریقا لوړې پرتې دي چې د کینیا لوړې ۵۱۹۹ متره او د کلیمانجارو څوکه ۵۸۹۵ متره لوړوالی لري. د افریقا د لویې وچې نور غرونه د تبستي غرونه دي چې په صحرایي سیمو کې پراته دي، لوړه څوکه یې د امی قوسی په نوم یادېږي او د سمندر له سطحې څخه تقریباً ۳۵۰۰ متره لوړوالی لري.

- د افریقا د لویې وچې لویه صحرا ددې براعظم په کومه برخه کې موقعیت لري؟

صحرایي سیمې چې د افریقا په شمال کې پرتې دي د لویې صحرا په نوم، د نړۍ لوی شګلنځایونه تشکیلوي، چې زیاتره برخې یې د کرنې وړ نه دي. د افریقا ساحلي برخې سمندر ته د نژدېوالي په سبب کرنیزې برخې تشکیلوي لکه د مصر، لیبیا او الجزایر شمالي سیمې، همدارنګه سوېل ختیځو سواحلو هم کرنیزې حاصل خیزې ځمکې منځ ته راوړې دي. په ختیځو سواحلو کې د موزمبیق او سومالیې د هېوادونو په اوږدو کې هم مهمې کرنیزې سیمې شته دي.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، هره ډله دې د لوست په غوره مطلبونو بحث او خبرې وکړي او پایلې دې نورو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱- د ګیني د خلیج لویدیځې لوړې په کوم نوم یادېږي؟
۲- د اطلس غرونه په کوم ځای کې موقعیت لري؟
۳- د افریقا د لویې وچې په ختیځ کې کومه لوړه سطحه پرته ده؟
۴- د تبستي غرونه د افریقا په کوم ځای کې موقعیت لري؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د لومړي لوست د افریقا د لویې وچې له لیکنې پرته نقشه په خپلو کتابچو کې بشپړه کړئ او لاندېنیو پوښتنوته ځواب ورکړئ.

۱- د غرونو هغه لړۍ چې د افریقا د لویې وچې په شمال لویدیځ کې پرتې دي څه نومېږي؟
۲- د افریقا د لویې وچې د غرونو د لوړو څوکو نومونه وواياست.

# سیندونه




د افریقا سیندونه په کومو حوزو کې پراته دي، او ددې لویې وچې په اقتصادي او کرنیز ژوند کې څه ارزښت لري؟

د افریقا د لویې وچې د سیندونو نقشې ته وګورئ. څرنګه چې د استوا کرښه د افریقا د لویې وچې د منځنۍ برخې څخه تېرېږي، نو ځکه يې په استوايي برخه کې اورښت ډېر زيات دی. له همدې کبله د افريقا په لويه وچه کې ډېر سيندونه بهيږي چې ټول اوږده او له اوبو څخه ډک دي. خو دا سيندونه د چټکې بهېدنې او لږ ژوروالي له امله د بېړۍ چلولو وړ نه دي.

- د افريقا د اوبو حوزې کومې دي؟

د افريقا د اوبو حوزې کولای شو په لاندې توګه ووېشو:

۱- د مديترانې د حوزې سيندونه لکه د نيل سيند.

۲- د اطلس سمندر د حوزې سيندونه، لکه: کانګو، نايجير، سنيګال او اُرانژ.

۳- د هند د سمندر سيندونه، لکه: زامبيزي؟

٤- د ترلې حوزې سيندونه چې د افريقا په جنوبي شګلن ځايونو يا لويه صحرا کې جذبيږي، لکه: شاري.

- **دنيل سيند**

د افريقا له مشهورو سيندونو څخه دی چې مصر يې د نړۍ د ډېرو لرغونو هېوادونو په ليکه کې درولی دی. هيرودت يوناني مورخ ليکي چې (مصر د نيل ډالی ده). د نيل د سيند وادي پراخه ساحه ده چې له ختيځ او لوېديځ لوري څخه د دښتو په واسطه محدوده شوې ده. د نفوسو د گڼ شمېر زياته برخه د نيل د سيند په وادي او د هغه په دلتاکې ځای پرځای شوې ده. د نيل سيند چې ٦٦٩٥ کيلومتره اوږدوالی لري د ويکتوريا او البرت د جهيلونو څخه سرچينه اخلي، د شمال په لور بهېږي او يوازې د قاهرې او د اسوان په سيموکې د کرنې ځمکې اوبه کوي.

**د نيل سيند نقشه**



د نیل سیند  په خپل مصب (خوله) کې د مدیترانې د سمندرگي د اسکندریې په برخه کې لویې دلتاوې (Deltas) جوړوي. د نیل د وادي رسوبي خاورو ددې حوزې په کرنه او د خلکو د بشري تمدن په بنسټ کې مرسته کړې ده. په مصر کې تقریباً هېڅ باران نه اوري، خو ددې لپاره چې له کرنې څخه پوره خوراکي مواد لاس ته راشي ډېرو اوبو ته اړتیا ده، دې موخې ته د رسیدلو لپاره د نیل پرسیند بندونه جوړ شوي دي. لکه چې دارنگه  په ۱۹۷۱ م کال کې د اسوان بند د اسوان په سیمه کې جوړ شوی دی چې د نړۍ ډېر لوی مصنوعي

د افریقا د سیندونو سپینه نقشه



جهيل يې هم جوړ کړی دی. د نوموړي بند له اوبو څخه د کرنيزو ځمکو په خړو بولو کې ډېره ګټه اخيستل کېږي. سربېره پر دې د زياتو اوبو د خطر مخنيوی هم کوي او د برېښنا د توليد سبب هم ګرځېدلی دی. د نيل د سيند اقتصادي ګټه داده چې هم وربانديې بند جوړ شوی او هم د سوډان او مصر دواړه هېوادونه د هغه له اوبو څخه په اوبو لګولو کې ګټه اخلي. د نيل سيند مرستيالان د سپين نيل او ابي نيل په نومونو يادېږي. دا سيند د سوډان د هېواد تر پلازمينې د سپين نيل په نوم يادېږي. په همدې ځای کې د خپل مرستيال ابي نيل سره چې د حبشې له غرونو څخه سرچينه اخلي يو ځای کېږي. د سپين نيل اوبه د خپل بهير په اوږدو کې بړاس کېږي او اوبه يې کمېږي، نو ځکه ابي نيل د نيل د سيند د اوبو په حجم کې غوره رول لوبوي.

### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په څو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې په لاندې موضوعاتو باندې بحث وکړي او پايله دې ټولګيوالو ته ووايي.

- د افريقا د لويې وچې د اوبو حوزې.
- د نيل سيند او مرستيالان يې.
- د نيل د سيند اقتصادی ارزښت.

### پوښتنې

۱- د نفوسو شمېر د نيل د سيند په کومه برخه کې زيات دی؟
۲- د هغو بندونو نومونه واخلئ چې د نيل پر سيند جوړ شوي دي؟
۳- د نيل سيند څه اقتصادي ارزښت لري؟

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

د افريقا د سيندونو د ليکنې پرته نقشه، په خپلو کتابچو کې رسم کړئ او په هغې کې د افريقا د مهمو سيندونو نومونه او موقعيت وليکئ.

# د کانګو حوزه



د استوايي ځنګلونو منظره

د کانګو دحوزې ساحې ته ولې شنه افریقا وايي؟

د افریقا بله لویه حوزه د کانګو حوزه ده چې په طبیعي توګه هلته استوايي ګڼ او لوی ځنګلونه شته. ډېرې تودوخې او زیاتو بارانونو، ګڼ ځنګلونه په هغه ځای کې منځ ته راوړي دي. د نباتاتو وده دلته هېڅکله نه ځنډېږي. د افریقا دې برخې ته شنه افریقا وايي. هلته د ونو وده دومره زیاته ده چې کله یې لوړوالی ۵۰ مترو ته هم رسیږي. د (۷) مخ د افریقا د سیندونو نقشې کې وګورئ د کانګو سیند چې له ختیځ څخه لوېدیځ لور ته بهیږي د افریقا استوايي برخه په برکې نیسي. د کانګو سیند د خپل نرۍ بستر له لارې د اطلس په سمندر کې تویږي. د هغه د بهیر منځنۍ او شمالي برخې استوايي باراني ځنګلونو پوښلې دي، هلته د نفوسو د کموالي له امله خلک له یو بل څخه لرې پراته دي او سیمه ییز خلک په خپلو کوچنیو کروندو کې په کرنه بوخت دي.
د کانګو سیند د زایر د هېواد له جنوب ختیځ څخه سرچینه اخلي، د ۴۳۷۰ کیلومترو په واټن لومړی شمال لورته او بیا لوېدیځې خوا ته بهېږي او له خپلو زیاتو اوبو سره د اطلس په سمندر کې توییږي. دا سیند د خپل بهیر په پیل کې د لوالابا (*Lualaba*) په نوم یادشوی او د خپلو مرستیالانو سره یې د افریقا د لویې وچې د خاورې ۱،۸ برخه نیولې ده.
د کانګو د سیند اوږدوالی د نیل تر سیند څخه لږ، خو د اوبو حجم یې زیات دی. دا چې د اوبو د اخیستنې حوزه یې په استوايي سیمو کې پرته ده او هلته ټول کال باران اوري، نو له اوبو څخه ډک وي. د خپل بهیر په

پورتنی برخه کې يې ځړوبې هم منځته راوړې دي.

## د نايجير سيند

د افريقا د اوبو له ډکو سيندونو څخه دی. د نايجير سيند د افريقا د لويې وچې په لوېديځ کې د گينې او عاج ساحل د هېوادونو د سمسورتيا سبب شوي دی. د نايجير د سيند لويه دلتا د نفتو غوره زېرمې هم لري چې د (پورت هارکورت *Port Harcourt* په برخه کې ځای پرځای شوي دي.

د نايجير د سيند لوېدېځې برخې چې د ٤٠٠٠ کيلومترو په اوږدوالي يې د سيراليون له لوړو څخه سرچينه اخيستې د مالي له هېواد څخه د تېرېدو وروسته د نايجيريا هېواد ته ننوځي او د اطلس سمندر د گيني په خليج کې توييږي.

## د زامبزي سيند

د زامبزی سيند له ٢٥٠٠ کيلومترو څخه زيات اوږدوالی لري. د زامبيا د هېواد له شمال لوېديځ څخه سرچينه اخلي او د جنوب خواته بهيږي.

ددې حوزې زياته برخه لوړو سطحو چې زياتره يې وښو پوښلې، نيولې ده. دا سيند له شمال څخه سوېل خواته بهيږي او د هند په سمندرکې توييږي. د زامبزي سيند د خپل بهير په اوږدو کې ځړوبي (آبشار) منځ ته راوړي چې مهم ځړوبی يې ويکتوريا نوميږي.

## دسنيگال سيند

دا سيند د لوېديځې افريقا د سنيگال په هېواد او د اطلس سمندر په ختيځ کې موقعيت لري او د اطلس په سمندرکې توييږي.

د سنيگال سيند ١٢٠٠ کيلومتره اوږدوالی لري. د سنيگال دره هم د استوگنې له غوره مرکزونو څخه ده. د افريقا په لويه وچه کې د سيندونو شتون د هوا د رطوبت، سمسورتيا او د کرنيزو توليداتو د زياتوالي سبب کېږي. همدارنگه ددې سيندونو په شاوخوا کې د زيات شمېر وگړو د ځای پرځای کيدنې او هم د تاريخ په اوږدو کې د لرغونو او پرتمينو تمدنونو د منځ ته راتلو سبب شوي دي. د افريقا سيندونه په پسرلي کې مستيږي، خو له نيکه مرغه اوس يې سېلابي بهير تر يوه حده تر کنټرول لاندې راغلې دي.

د زمبیا او زمبابوې د هیوادونو تر منځ د زامبزي د سیند د پاسه پل



### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې په دې هکله چې ولې د افریقا د لویې وچې سیندونه د کال په اوږدو کې له اوبو ډک او سېلابي وي، بحث وکړي او د خپلو خبرو او بحث پایلې دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

١- د افریقا سیندونه د دې لویې وچې پر اوبو، هوا او اقتصاد څه اغیزه لري؟ توضیح یې کړئ.
٢- د کانګو سیند څه ارزښت لري؟
٣- د سنیګال سیند د څه غوره ارزښت لرونکی دی؟
٤- د نایجیر سیند څه اقتصادي ارزښت لري؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د افریقا د سیندونو په هکله خپل لنډ معلومات ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکې لوست کې یې

# جهيلونه




د جهيل په هكله څه پوهېږئ او له جهيل څخه څه گټه اخيستل كيږي؟

د افريقا په لويه وچه كې ډېر لوى او كوچني جهيلونه شته چې تر ټولو لوى يې د ويكتوريا جهيل دى او د تانزانيا او يوگندا د هېوادونو ترمنځ بېلوونكې پوله جوړوي. ډېر كوچنى جهيل يې د نگامي جهيل دى چې د بوتسوانا په هېواد كې دى. د جهيلونو له اوبو څخه د څښلو او د سمندري حيواناتو او الوتونكو د خوړو لپاره گټه اخيستل كېږي. ځيني جهيلونه مالگين وي يعنې هغه وخت چې د جهيلونو اوبه په براس بدلې شي مالگه يې رسوب كوي. همدارنگه هغه الوتونكي چې له يوې سيمې څخه بلې سيمې ته ځي، د لارې په اوږدو كې د همدې جهيلونو او د هغو له اوبو څخه گټه اخلي. ددې جهيلونو له اوبو څخه د اوبو د غټو پمپونو په وسيله د ساحلي سيمو د خړو بولو لپاره گټه اخيستل كيږي. د افريقا په لويه وچه كې ددې جهيلونو شتون په سيمه كې د رطوبت سبب هم كيږي او تر يوه حده د هغې سيمې د وچ والي مخه نيسي. نوموړي جهيلونه زياتره د افريقا په سوېل ختيځ كې پراته دي چې د دې لويې وچې د تكتونيكي ساحې ښكارندوى دي.

لكه څرنگه چې مو مخكې وويل دافريقا د لويې وچې مهم جهيل ويكتوريا (Victoria) دى چې

د تانزانيا او يوگندا هېوادونو ترمنځ بېلوونکي پوله جوړوي او لوی ښارونه هم د ويکتوريا د جهيل شاوخوا جوړشوي دي. په طبيعي نقشه کې گورئ چې د نياسا (Nayasa) (مالاوی) جهيل د موزمبيق د هېواد په شمال او د مالاوی د هېواد په ختيځ کې، د تانگانيکا جهيل د تانزانيا د هېواد په لوېديځ کې، د البرت (Albert) جهيل د يوگندا د هېواد په لوېديځ کې، د رودولف (Rudolf) جهيل د کينيا د هېواد په شمال لوېديځ کې، د چاد (Chad) جهيل د چاد په هېواد کې، د تانا (Tana) جهيل په ايتوپيا کې او د نگامي (Ngami) جهيل د بوتسوانا په هېواد کې موقعيت لري.

### د ټولگي فعاليت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د جهيلونو د اقتصادي ارزښت په هکله بحث او خبرې وکړي، د بحث پايلې دې ټولگيوالو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱- د افريقا د لويو او کوچنيو جهيلونو نومونه واخلئ؟
۲- د افريقا په لويه وچه کې د جهيلونو شتون څه گټې لري؟
۳- د نگامي جهيل په کوم هېواد کې موقعيت لري؟

| | |
|---|---|
| د نگامي جهيل | په ايتوپيا کې |
| | په سومالی کې |
| | په بوتسوانا کې |
| | ساحل عاج کې |

### له ټولگي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې د افريقا د لويې وچې نقشه رسم کړي او ټول جهيلونه دې په هغې کې وښيي او رنگ دې کړي.

# سمندرګي (بحيرې)



د مديترانې له سمندرګي څخه يو تصوير

دافريقا د سمندرګيو په هکله څه پوهېږئ او د افريقا خلك له سمندرګيو څخه څه ګټه اخلي؟

د افريقا لويه وچه د ځمکني جوړښت او سواحلو د درلودو له امله زيات سمندرګي نه لري.
دا لويه وچه دوه مهم سمندرګي لري چې له هغو څخه د سوداګرۍ د بېړيو د تګ او راتګ لپاره ګټه اخيستل کيږي. همدارنګه له سمندرګيو څخه د کال په بېلا بېلو موسمونو کې مهاجر الوتونکي چې له يوځای څخه بل ځای ته کوچيږي د هغو له موقعيت څخه د يوې پيژندل شوې سيمې په توګه ګټه اخلي. سربېره پردې د بحري حيواناتو لپاره خواړه هم برابروي. هغه وګړي چې د سمندرګيو په سواحلو کې استوګنه لري هغوی د کبانو په ښکار د خپل ژوند اړتياوې پوره کوي.

## ۱- د مديترانې سمندرګی

د افريقا د لويې وچې په شمال کې د مديترانې سمندرګی پروت دی، چې د نړۍ يو لوی سمندرګی هم دی. پراخوالی يې ۲،۹۶۶،۰۰۰ کيلومتره مربع او ډېره ژوره نقطه يې ۴۳۳۰ متره ده. دا سمندرګی په جنوب ختيځ کې د سويز کانال په واسطې سره سمندرګي سره نښلول شوی دی او په لوېديځ کې د جبل الطارق د ابنا په واسطې د اطلس (اتلانتيک) د سمندر سره نښتی دی او لويه سوداګريزه لاره يې جوړه کړې ده. هغه هېوادونه چې د مديترانې د سمندرګي شاوخواته پراته دي مديترانه يي اقليم او ښې هوا لرونکي دي.

## ۲- احمر (سور) سمندرگی

احمر یا سور سمندرگی د افریقا په شمال ختیځ کې پروت دی چې په شمالي برخه کې د سویز کانال په واسطې د مدیترانې د سمندرګي سره نښلول شوی دی او په سوېل ختیځې برخې کې د باب المندب د آبنا په واسطې د عدن له خلیج سره نښتی دی. ددې سمندرگي پراخوالی ۴۳۸،۰۰۰ کیلومتره مربع دی. اوبه یې ډېره مالګه لري او د څښلو وړ نه دي. همدارنګه هلته د اوبو براس کېدل خپلې لوړې اندازې ته رسېږي، ځکه چې له دوارو خواوو د لویو صحراوو په واسطې محدود شوی دی.

د سور سمندرگی یو تصویر



## اضافي معلومات

**د سویز کانال:** د سویز د کانال کیندل فرانسوي مهندس فردیناند دولیسپس طرحه کړ. ددې کانال د جوړولو کار په ۱۸۵۶ م کال کې پیل او په ۱۸۶۹ کال کې پای ته ورسید او د نومبر په میاشت کې پرانیستل شو. ۹۹ کلن امتیاز یې یو نړیوال شرکت ته چې په هغې کې فرانسې، انگلستان او نورو اروپایي هېوادونو گډون درلود ورکړ شو او مرکز یې په پاریس کې و. د سویز د کانال اوږدوالی د مدیترانې د سمندرگي د غاړې د پورت سعید له بندر څخه تر سویزه یعنې د سره سمندرگي ترغاړې ۱۶۱ کیلومتره دی، دگټې اخیستنې وړ سورېې ۶۰ متره او ژوروالی یې ۱۲ متره دی.

د سویز له کانال څخه د ۶۰ زرو ټنو په ظرفیت بیړۍ شپه او ورځ تگ اوراتگ کولای شي. د آسیا او اروپا ترمنځ په سلوکې ۸۰ د سوداگریزو مالونو لېږدیدنه د سویزکانال له لارې ترسره کېږي چې د نړیوالې سوداگرۍ په سلو کی ۱۵ په بر کې نیسي. د سویز کانال د مصر په هېواد کې کیندل شوی دی. سویز کانال په ۱۹۵۶م کال کې د مصر دولت له خوا ملي اعلان شو.

د سویز د کانال یوه څنډه



د سویز د کانال یوه بله برخه



### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د سمندرګیو د اقتصادي ارزښت په هکله بحث وکړي او د بحث پایلې دې نورو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱- د مدیترانې سمندرګی دافریقا د لوېې وچې په کومې برخې کې موقعیت لري؟
۲- سور (احمر) سمندرګی په شمال کې د کوم کانال په وسیلې د مدیترانې د سمندرګي سره نښلول شوی دی؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د افریقا نقشه رسم کړي او سمندرګي دې د هغې پرمخ وښيي.

# خليجونه




د افريقا د خليجونو نقشه

دافريقا د لويې وچې په شاوخواکې کوم خليجونه شته دي؟

د افريقا د لويې وچې په غاړوکې د وتلو او ننوتلو برخو د نشتوالي له امله، زيات شمېر خليجونه نشته. د افريقا خليجونه عبارت دي له:

- د عدن خليج (Aden) ددې لويې وچې په شمال ختيځ کې چې د آسيا د لويې وچې يوه برخه هم گډه کېږي، موقعيت لري.
- د فول (Foul) خليج د افريقا په شمال ختيځ کې چې په سره (احمر) سمندرگي کې موقعيت لري.
- د سويز(Suez) خليج د سويز کانال په جنوب کې موقعيت لري.

د افريقا د شمال خليجونه عبارت دي له:

د سلوم (Salum) خليج، بمبه (Bamba) خليج، سدرا (Sidra) خليج، قابس (Qabis) خليج او د تونس( Tunis) خليج چې د افريقا په شمال کې د مديتراني په سمندرگي کې موقعيت لري.

هغه خليجونه چې د افريقا په سوېل لوېديځ کې موقعيت لري عبارت دي له:

دگيني Guinea خليج، والويس Walvis خليج، لودريتس Luderits خليج او د سنت هلنا Saint Helena له خليج څخه چې ددې خليجونو له ډلې څخه دگيني خليج د افريقا د لويې وچې ډير لوی خليج او ډېر کوچنی خليج يې د سويز خليج دی چې د سويز کانال په سوېل کې موقعيت لري.

هغه خليجونه چې د مدغا سکر د ټاپو په شاوخواکې پراته دي عبارت دي له:

د سنت اگوستين له خليج څخه د مدغاسکر د ټاپو په سوېل لوېديځ کې او د انتون ژيل (Antongil) له

خلیج څخه د مدغاسکر د ټاپو په شمال ختیځ کې.



### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د نقشې له مخې خلیجونه نورو ته وښیي.

### پوښتني

۱- د افریقا د لویې وچې شمال ختیځ خلیجونه دنقشې پرمخ وښایاست.
۲- د سویز خلیج د افریقا د لویې وچې په کومه برخه کې موقعیت لري؟
۳- د افریقا د جنوب لوېدیځو خلیجونو نومونه واخلئ او په نقشه کې یې وښایاست؟
٤- دافریقا د لویې وچې د ډېر لوی او کوچني خلیج نوم واخلئ.
٥- د سنت اګوستین خلیج او د انتون ژیل خلیج د نقشې پرمخ وښـایاست.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د افریقا د لویې وچې نقشه رسمه کړي او د ټولو خلیجونو موقعیت دې دهغې پرمخ ولیکي.

# اقلیم




**د افریقا د لویي وچی د اورښت نقشه**

ولې د افریقا د لویې وچې اقلیم سره توپیر لري؟

د افریقا لویه وچه د هغه موقعیت له سببه چې د ځمکې د کرې پرمخ یې لري، د نړۍ ډېره توده لویه وچه شمېرل کیږي. که نقشې ته ښه ځیر شو، نو گورو چې د دې قارې یوه برخه یې په استوایي سیمې کې موقعیت لري او د دې سیمې اقلیم تود، سوځوونکی او څه ناڅه مرطوب دی. د افریقا د وچې د استوایي اقلیم په شمال او سویل کې د استوا لاندې اقلیمي سیمې پراختیا موندلې.د استوایې اقلیم په شمال او سوېل کې د استوا لاندې پراختیا موندلې، اقلیم یې نسبتاً معتدل او لنده بل یې ډېر لږ دی، ځکه چې په شمال لوېدیځ کې د اطلس غرونه، په ختیځ کې د حبشې لوړې سطحې او په سوېل کې د د راکنزبرگ غرونه وچې اقلیمي سیمو

ته د سمندري مرطوبې هوا د ورننوتلو خنډ گرځي.

د افریقا ختیځې برخې د هند سمندر د مونسوني غیر منظمو بادونو په سیمه کې پرتې دي. په داسې حال کې چې پاتې برخې یې د تجارتي منظمو بادونو څخه برخمنې دي. د افریقا په بیدیاوو او سوځوونکو دښتو کې وچ او تاوده توپانونه لگیږي چې د خمسین په نوم شهرت لري. د استوایي سیمو اقلیم یې تود او نمجن دی او د کلنۍ تودوخې منځنۍ اندازه یې د سانتیگراد د ۳۰ درجو په شاوخوا کې ده. دافریقا ډېره توده سیمه چې په حقیقت کې نړیوال ریکارډ لري د عزیزیه Azizia په نوم د لیبیا په شمال لوېدیځ کې موقعیت لري چې د تودوخې لوړه اندازه یې د سانتیگراد تر ۵۸ درجو پورې ثبت شوې ده.

- د اطلس دغرونو، د حبشې د لوړو سطحو او د دراکنزبرگ د غرونو شته والی د افریقا د لوېې وچې پر اقلیم څه اغېزه لري؟

افریقا لږ اورښت لري. یوازې د استوا د کرښې په شاوخوا کې ټول کال اورښت کیږي. د استوا د کرښې څخه د شمال او سوېل لورته ورو ورو د هوا لنده بل کمېږي او لږ اورښت لري. واورې یوازې په ډېرو لوړو غرنیو سیمو کې اوري او همېشنۍ واورې په لوړو څوکو کې لیدل کیږي.

**د ټولگي فعالیت**

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، هره ډله دې د لوست د متن او اقلیمي نقشو څخه په گټې اخیستنې سره دافریقا د بادونو، رطوبت او تودوخې په هکله معلومات راټول او ټولگیوالو ته دې وړاندې کړي.

**پوښتنې**

۱- د افریقا د لوېې وچې په کومو سیمو کې واوره اوري؟

۲-په افریقا کې ډېره توده سیمه چې نړیوال ریکارډ لري په کوم هېواد کې موقعیت لري او په څه نامه یادېږي؟

**له ټولگي څخه بهر فعالیت**

که چیرې د استوا له کرښې څخه د افریقا د لوېې وچې شمال او سوېل لور ته سفر وکړو په خپل تگلوري کې په ترتیب سره د کوم ډول آب او هوا سره مخامخ کېږو؟

# مختلفې اقليمي سيمې



د صحرايي اقليم يوه ځنډه

آيا پوهېږئ دافريقا په مختلفواقليمي سيمو کې کوم ډول نباتات پيدا کېږي؟

د افريقا لويه وچه د ډول ډول اقليمونو له پلوه په لاندې اقليمي سيمو وېشل شوې ده:

## ۱- داستوايي ځنګلونو د سيمې اقليم

دا سيمې ډېره توده استوايي آب او هوا او همېشني بارانونه لري چې د کانګو حوزه او د افريقا سوېل لوېديځ سواحل په برکې نيسي. په دې برخې کې استوايي چتر ډوله د لوړو ونو ځنګلونه زيات دي . دلته د کاک او ربړ ونې ډېرې شنې کيږي. د استوايي ځنګلونو په ساحې کې په ځانګړي ډول د کانګو پلازمېنه يعنې د کنشاسا حوزه او د ګابون، لايبريا، سيراليون او کانګو برازاويل يوه برخه شامله ده.

- د استوايي اقليم ځانګړتياوې وواياست؟

## ۲- د ساوانا د استوا لاندې ساحې اقليم

دا ساحه د استوايي ځنګلونو د ساحې په شمال او سوېل کې موقعيت لري. په سوېل کې تر زامبيا او په شمال کې  مرکزي افريقا، نايجريا او دمالي سوېل په برکې نيسي.

د ساوانا نباتاتو د پوښښ یوه منظره



## ۳-د ستپ د ساحې اقليم

د ستپ د سيمې اقليم چې د افريقا په شمال کې د پټۍ په څېر د ختيځ څخه لوېديځ لورته غځېدلی دی، ددې سيمې د مالدارانو لپاره يې ښه څر ځايونه منځته راوړي دي او د استوا لاندې سيمو او لويې صحرا ترمنځ موقعيت لري. د ستپ سيمې نسبتاً توده او معتدله باراني آب او هوا لري. نوموړې سيمه د افريقا په سوېل کې بوتسوانا، د ناميبيا يوه برخه او د سوېلي افريقا شمال ختيځې برخې په برکې نيسي چې هغه هم د مالدارانو د څر ځايونو او غلو دانو د کرنې لپاره برابره ده.



د ستپ اقلیم

### ٤- د صحرايي سيمې اقليم

صحرايي سيمه د افريقا د براعظم په شمال کې ډېره پراخه ده، ټوله لويه صحرا په کې راځي. دا سيمه د سوډان او مصر څخه پيل د موريتانيا تر وروستی برخې پورې رسيږي او د نړۍ د لويو صحراوو څخه شمېرل کيږي. په دې سيمې کې وچ، صحرايي اقليم او لږ اورښت وي. په نوموړې ځای کې شاړې ځمکې او پراخ شګلنځايونه شته چې د کرنې لپاره ښه زمينه نشي برابرولای. دا اقليم د سوېل لويديځه وروستنۍ برخه په بر کې نيسي او د افريقا په سوېل لويديځ ساحل کې د يوې کوچنۍ پټۍ په څېر تر ۱۰ درجو د عرض البلد پورې غځېدلې ده. په دې سيمه کې د کالاهارۍ او ناميبيا صحراوې هم شامليږي.

### ٥- د مديترانه يي سيمې اقليم

مديترانه يي اقليم د افريقا په شمال کې ساحلي غاړې شاملې دي چې د اسکندريې څخه د مراکش تر سواحلو پورې غځېدلي دي. ددې سيمې مهم پيداوار انګور، د ستروس د کورنۍ ميوې (لکه کينو، نارنج،

مالټه، لیمو، سنتره)، خرما او ګڼي دي، خو په جنوبي افریقاکې مدیترانه يي اقلیم د هغې سوېل ختیځې برخې په برکې نیسي چې د لوسوتو کوچنی هېواد او د سوېلي افریقا جنوب ختیځې برخې په کې شاملې دي. سربېره پر هغې د جنوبي افریقا د هېواد پلازمېنه او مهم بندر کیپ ټاون هم مدیترانه يي اقلیم لري.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د افریقا په اقلیمي سیمو باندې بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې د ټولګي مخ ته د خپلې ډلې د بحث پایلې نورو ته بیان کړي.

### پوښتنې

زده کوونکي دې لاندې جدول د ورکړ شوو بیلګو په نظر کې نیولوسره په خپلو کتابچوکې بشپړ کړي.

| د اقلیم ډول | داقلیم ځانګړتیاوې |
|---|---|
| ۱- د استوایي ځنګلونو سیمې اقلیم | ۱- دا سیمې د ډېرې تودې استوايي اقلیم چې همېشني اوربښتونه ورسره مل وي، لرونکي ده. چې په هغې کې د استوایي چتر ډوله لوړو ونو ځنګلونه ډېر لیدل کېږي. |
| ۲- د ستپ د سیمې اقلیم | ۲- |
| ۳- د صحرایي سیمې اقلیم | ۳- |
| ٤- د مدیترانه يي سیمې اقلیم | ٤- |

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د افریقا نقشه رسم کړي، بیا دې د افریقا د لویې وچې اقلیمي سیمې د نقشې پر مخ په ښکلو رنګونو وښیي.

# سیاسي جغرافیه



د افریقا د لویې وچې سیاسي نقشه

د افریقا د لویې وچې د سیاسي جغرافیې په هکله څه پوهیږئ؟

افریقا هغه لویه وچه ده چې په کې زیات بدلونونه لیدل کیږي، له دې حقیقت سره هغه وخت اشنا کیږئ چې د افریقایي مهاجرینو لویو ډلو ته چې په نړۍ کې ځای پر ځای شوي دي پاملرنه وکړئ. ډېر وګړي یې د سیاسي او اقتصادي ناوړه شرایطو له امله د تېښتې په حال کې دي، خو افریقا په مثبت ډول هم د بدلیدو په حال کې ده، په دې معنا چې د ستونزو د لېرې کولو د حل لاره یې هم پیداکړې ده. د بېلګې په توګه، د ځینو سیمو د صحرایي کیدلو سره د مبارزې او مخنیوي په خاطر یې ښه کارونه هم سرته رسولي دي او د سمسورتیا د ساتلو لپاره یې کوښښ کوي، خو ددې لویې وچې خلکو د سیاسي، اقتصادي او ټولنیزې پرمختیا په برخه کې د نړۍ د نورو لویو وچو په پرتله وروسته ګام ایښی دی، نو ځکه نسبتاً وروسته پاتې دي.

ددې لویې وچې زیاتره خلک د سوانا په سیمو کې په شیندلي ډول استوګنه کوي او یا د ځنګلونو په منځ کې اوسیږي یا داچې لاتراوسه د کوچیانو په څېر ژوند کوي. دوی د خپل ژوند اړتیاوې د ابتدایي کرنې له لارې لاس ته راوړي.

د افریقا د لږې پرمختیا په هکله ځینې لیکوونکي او څېړونکي په دې باور دي چې د هغو د وروسته پاتې والي اصلي حقیقت د نورو لاملونه ترڅنګ یو هم د لوېدیځو اروپایانو په وسیله د هغوی استثمارول دي او که نه د ښکیلاک(استعمار) د مخه له ۱۲ څخه تر ۱۵ میلادي پېړۍ پورې ځینو تور پوستکو افریقایانو د سوډان

د هېواد په لوېديځ کې خپل کلتورونه درلودل او متمدنه هېوادونه يې منځ ته راوړي وو چې دګانا او مالي هېوادونو نومونه هم له هماغو پخوانيو قومونو څخه استازيتوب کوي او حتی نن هم وينو هغه هېوادونه چې تازه خپلواکی ته رسيدلي، د هېوادونو يا ښارونو او نورو برخو نومونه يې چې د اسارت په وخت کې ايښودل شوي وو بدل کړي او يا يې بېرته هم هغه پخوانيو اصلي نومونو ته ګرځولي دي او يا يې د پخوانيو اتلانو او جنګياليو په نوم يادوي. هغه وخت چې د اروپايي هېوادونو پانګوالو، د ښه سوق الجيشي موقعيت، طبيعي ډېرو منابعو او بشري ارزانه ځواک ته د رسېدو پر بنسټ افريقا خپل هدف وګرځوله او هلته يې د خپلو صنعتي توليدي توکو د وړاندې کولو لپاره تود




دغه نقشه په افريقا کې د ځينو اروپايي هېوادونو مستعمرې ښرګندوي.

بازار وموند، د هغو پر استثمار يې نور هم کوښښ وکړ.

د هغو جګړو په پايله کې چې د افريقا خلکو پر دښمن برى حاصل کړ د افريقا د مختلفو سيمو نورې خپلواکې غوښتونکې جبهې يې هم وهڅولې او هغوى يې له استعمارګرانو څخه دخپلواکۍ لاسته راوړلوته، هيله من کړل. په افريقاکې تر ۱۹۵۱ م کال پورې له څلورو هېوادونو (حبشى، لايبريا، مصر او جنوبي افريقا) څخه زيات خپلواک نه وو او له ۱۹۵۲ م څخه تر ۱۹۹۶ م کال پورې د هغو شمېر ۳۷ مملکتونو ته ورسېده چې اوس د افريقا د لوېې وچې په سياسي نقشه کې ۵۵ خپلواک هېوادونه ليدلاى شو.

د استعمار د دوران د افريقايي مريانو يو تصوير



په جنوبي افریقا کې د اوږدې مودې لپاره د لویدیځو هېوادونو سپین پوستکي لږه کی  په واک کې وو او پر زیاترو تور پوستکو باندې  یې حکومت کاوه. دا نژادي تبعیض(اپارتاید) په هغه ځای کې د  توږپوستکو خلکو د مهاجرت لامل شوی وچې د اپارتاید له پای ته رسېدو وروسته کله چې په جنوبي افریقا کې په ۱۹۹٤م کال کې خپلواکې ټولټاکنې وشوې، دهغه هېواد اوسېدونکي بېرته خپلو اصلي سیمو ته راوګرځېدل.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، د جنوبي افریقا په نژادي تبعیض دې بحث وکړي او پایلې دې نورو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱ـ نژادي تبعیض په کوم کال کې په جنوبي افریقا کې پای ته ورسیده؟

۲ـ د نړۍ په نقشه کې اوس افریقا څو خپلواک هېوادونه لري؟ د نقشې پرمخ یې وښایاست.

۳ـ څېړونکو د افریقایانو د ورو پرمختګ په هکله څه نظر درلوده؟

٤ـ په ۱۹۵۱ م کې افریقا څو خپلواک هېوادونه درلودل؟ نومونه یې ووایاست.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د افریقا د لوېې وچې د وروسته پاتې والي لامل په هکله یوه  مطلب ولیکئ او ټولګیوالو ته یې وړاندې کړئ.

# بشري جغرافيه




د افريقا په لويه وچه کې د نفوسو د جغرافيايي ويش نقشه

ـ دافريقا د لويې وچې په کومو سيمو کې د نفوسو شمير زيات دی او ولې؟

د افريقا د لويې وچې بشري جغرافيه په څلورو برخوکې چې له نفوسو، نژاد، ژبې او دين څخه عبارت دي په بشپړه توگه مطالعه کوو.

## نفوس

د نړۍ د بشر ډېر لرغوني آثار، د افريقا د لويې وچې د تانزانيا په هېواد کې ليدل شوي چې څه ناخه ٤،٥ ميليونه کاله لرغونتوب لري. په ۱۹۹۸م کال کې د افريقا په لويه وچه کې د ٦۱٥ ميليونو تنو په شاوخوا کې خلکو ژوند کاوه چې د ټولې نړۍ د نفوسو په سلو کې ۱۲،۲ يې جوړول. ددې لويې وچې د نفوسو د لږوالي لامل په صحراوو او ګڼو ځنګلونو کې د ژوند نامناسب شرايط، ساري ناروغۍ، کورنۍ جګړې او د خوراکي توکو لږوالی دی. د وګړو ګڼوالي د افريقا په مختلفو سيمو کې سره توپير لري. د افريقا په صحرا کې تقريباً څوک نه اوسيږي، په سوانا او سب تروپيك سيمو کې چې حاصلخيزې ځمکې لري د نفوسو ګڼوالی يې ډېر دی، د بېلګې په توګه: د نيل سيند د وادي په کښتنۍ برخې کې د نفوسو ګڼوالی په هرکيلومتر مربع کې ۱۰۰ تنو ته رسيږي. د نفوسو ګڼوالی د سيندونو او سمندرونو په غاړو کې هم ليدل کيږي.

ـ د افريقا د لويې وچې د نفوسو د لږوالي لامل (علت) څه دی؟

## نژاد

د افريقا د لويې وچې د نفوسو د وېش او قومي ترکيب نقشوته وګورئ. دافريقا په شمال کې عرب خلک ژوند کوي چې په عربي ژبه خبرې کوي او زيات شمېر يې په ښارونوکې اوسيږي. د کلو خلک په کرنه بوخت دي. ددې سيمې عرب اوسېدونکي له دوو قبيلو يعنې حامي(Hami) او سامي(Sami) سره تړاو لري. دا خلک غنم رنګه څېره او تور وېښتان لري. د افريقا په شمال لوېديځ کې بربر قبايل استوګنه کوي چې سپين پوستکی لري او د اسپانويانو او ايټالويانو له نسل سره ورته والی لري. له همدې کبله د مراکش، الجزاير او تونس هېوادونه د بربر هېوادونو په نوم يادوي. د افريقا په جنوبي او مرکزي برخو او لويې صحرا کې تور پوستي خلک اوسيږي چې د افريقايي تورانو په نوم ياديږي او د افريقا د ټولو وګړو $\frac{۲}{۳}$ برخه جوړوي، خو له توکميز پلوه سره توپير لري، نو ځکه په بېلو بېلو ډلو وېشل شوي دي.

د مهاجرينو نقشه



د مرکزي او جنوبي افريقا په لويه صحرا کې تورپوستي خلک ژوند کوي چې د ونې، څېرې او د پوستکي د رنګ له پلوه توپيرسره لري اوپه دوو برخو سوډاني او بنتونيګرويانو وېشل شوي دي. د منځنۍ افريقا په استوايي ځنګلونو کې د پيګمي قبيلو وګړي اوسېږي چې ټيټې ونې لري. د نارينوو منځنۍ ونه يې ۱٤٥ سانتي متره او د ښځو يې ۱۳۵ سانتي مترو ته رسيږي. د پيګمي خلکو د پوستکي رنګ دومره تور نه دي. ددې خلکو کورونه او اړتياوې له ځنګلونو څخه پوره کيږي او کورونه يې په مشکل سره ليدل کيږي، ځکه د هغو کورونه د ونو په پاڼو او ښاخونو پوښلي دي. د زړو پيګمي خلکو کالي د يو ملاتړونی(کمربند) څخه عبارت دي چې د ملا څخه يې تړي او کله هم د ونو پاڼې په هغو پورې تړي. کله چې اروپايي سپين پوستي مهاجر خلک د ۱۸۰۰ م کال څخه وروسته افريقا ته راغلي وو، د خپلو ښکيلاکي کړنلارو د عملي کولو په خاطر يې د افريقا ډېرې برخې د خپلې واکمنۍ لاندې راوستې، هغوی په جنوبي افريقا او زمبابوی کې ژوند کاوه او وروسته په کينيا، يوګندا او نورو افريقايي هېوادونو کې خواره واره شول.


د شمالي افريقا له عربو يوه څېره


د افريقا له نيګرو خلکو يوه څېره




## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د افریقایانو د مهاجرتونو پر عواملو بحث وکړي او دخپلو بحثونو پايلې دې نوروته وړاندې کړي.

## پوښتنې

۱– د افریقا په شمال کې کوم خلک ژوند کوي او په کومې ژبې خبرې کوي؟

۲ـ د افریقا په شمال لویدیځ کې کوم قبایل ژوند کوي او کوم نسل ته ورته والی لري؟

۳ـ د افریقا د لوېې وچې په لوېې صحرا او منځنیو او جنوبي برخو کې کوم خلک اوسېږي او په څه نوم یادیږي؟

٤ـ ولې اروپايي خلکو افریقا ته مهاجرت وکړ؟ دهجرت موخه یې څه وه او د افریقا په کومو هېوادونو کې یې ژوند تېراوه؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

د افریقا د وګړو د قومي ترکیب نقشه ولولئ او لاندې پوښتنې په لیکلې بڼه ځواب کړئ:

۱- د افریقا په لوېې وچې کې په عمومي ډول تور نژاده وګړي په کومې برخې کې اوسېږي؟

۲- د همدې نقشې پر بنسټ د مصر، لیبیا او مراکش هېوادونو په (۲۰۰۵) میلادي کال کې څو میلیونه نفوس درلود؟

# د افریقا د دین او ژبې په هکله څه پوهیږئ؟




د افریقا د لویې وچې د اسلامي هیوادونو نقشه

ـ د افریقا په لویې وچې کې کوم دینونه زیات پیروان لري؟

**دین:** پورتني نقشې ته وګورئ. د افریقا په لویې وچې کې بېلابېل دینونه، لکه: د اسلام مقدس دین، عیسویت او بودایي دین زیات پیروان لري چې په ټولو هېوادونو کې خواره واره اوسېږي. په عمومي توګه په دې لویې وچې کې (۲۳) هیوادونه داسلام د مقدس دین پیروان دي او په نورو افریقایي هېوادونو کې هم په مختلفې سلنې مسلمانان ژوند کوي.

**ژبې:** د افریقا د لویې وچې نفوس د بېلابېلو ملیتونو څخه جوړ شوی چې په بېلابېلو ژبو او لهجو خبرې کوي او شمېر یې ۷۰۰ ژبو او ۳۰۰ لهجو ته رسیږي. څرنګه چې د افریقا زیاتره هېوادونه د اروپا یې ښکیلاک لاندې وو، نو ځکه یې هماغه ښکیلاکګره بهرنی ژبه خپله رسمي ژبه ګرځولې وه. اوس چې دا هېوادونه خپلواک شوي هم دې بیایې هم هماغه بهرنی ژبې د رسمي ژبې په توګه پاتې دي چې ډېرې مهمې یې انګلیسي، اسپانوي، فرانسوي او پرتګالي ژبې دي. د افریقا په لویه وچه کې په ډول ډول ژبو خبرې کېږي، خو په عمومي توګه په دې لویه وچه کې څلور ډلې ژبې ډېر رواج لري:

۱– سامي ژبې چې په هغو کې سامي، عربي، قبطي او امهري ژبې شاملې دي.

۲ـ ساحلي یا سواحلي ژبې چې په هغو کې د بانتو ژبې او یو ډول نورې ژبې چې د سیمه ییزو ژبو د یو والي محصول دي او شمېر یې ډېر زیات دی، شاملېږي.

۳- سیمه ییزه ژبې چې شمېر یې ډېر زیات دی.
٤- اروپایي ژبې چې د هغو په سرکې فرانسوي او انګلیسي ژبې دي.
دافریقایي هېوادونو رسمي ژبې کولای شو په لاندې جدول کې مطالعه کړو.

د افریقایي خلکو د ژبو جدول

| رسمي ژبې | عربي | انګلیسي | فرانسوي | پرتګالي | سواحلي | افریقایي |
|---|---|---|---|---|---|---|
| د هېوادونو نوم | مصر<br>سوډان<br>مراکش<br>تونس<br>الجزایر<br>لیبیا<br>موریتانیا<br>(لویدیځه صحرا)<br>ایرتیریا | نایجیریا<br>ګامبیا<br>ګانا<br>سیرالیون<br>لایبریا<br>اوګندا<br>زامبیا<br>مالاوي<br>زمبامبوي<br>کینیا<br>بوتسوانا<br>نامبیا<br>سوېلي افریقا | سسنیګال<br>ګینه<br>مالي<br>د عاج ساحل<br>بورکینا فاسو<br>توګو<br>بنین<br>نایجریا<br>چاډ<br>(د مرکزي افریقا<br>جمهوریت)<br>(کانګو- کینشاسا)<br>(کانګو – برازاویل)<br>روندا<br>ګابون<br>مدغاسکر | انګولا<br>(ګینه – بیساو)<br>کپ وردي<br>(ساوتام او پرنسیپي)<br>موزمبیق | تانزانیا<br>کینیا<br>(او د اوګندا په یوه<br>برخه کې) | سوېلي افریقا |

• همدارنګه نور هېوادونه هم شته چې نورې رسمي ژبې لري.

## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، هره ډله دې د ژبو دیوې ډلې په هکله معلومات وړاندې کړي.

## پوښتنې

۱– مسلمانان زیاتره د افریقا په کومې برخې کې اوسېږي؟
۲- د افریقا په لویه وچه کې څو هېوادونه د اسلام د مقدس دین پیروي کوي؟
۳- ولې افریقایانو بهرنۍ ژبې د خپلې رسمي ژبو په توګه منلې دي؟
٤- اروپایي ژبې او محلي ژبې معرفي کړی.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د افریقا د لویې وچې نقشه په خپلو کتابچو کې رسمه کړي او د افریقا د خلکو د دینونو سیمې دې په هغې کې وښیي.

# اقتصادي جغرافيه



پهٔ کینیا کې د چای د پاڼو راټولونه

**د افريقا د لويې وچې د اقتصادي جغرافيې په هکله څه پوهيږئ؟**

د افريقا په لويې وچې کې اقتصادي پراختيا او پرمختګ د نورو لويو وچو په پرتله وروسته يعنې د ۱۹ پېړۍ په لومړيو کې پيل شو او تر هغه دمخه ډير ورو و.

ددې لويې وچې اقتصادي بڼه هم مختلف رنګونه او ډولونه لري. لکه چې دلاسي صنايعو د ډېرې ساده او لومړۍ بڼې څخه تر ډيرو عصري فابريکو پورې کولای شو په هغې کې ووينو يا د ټرانسپورت او توکو په وړلو کې د ډيرو ابتدايي اوساده لارو څخه چې نيغ په نيغه د انسانانو په وسيله ترسره کېږي، تر ډيرو عصري سمندري بندرونو، د اوسپنو کرښو، هوايي کرښو او پرمختللو هوايي ډګرونو پورې کولای شو وګورو. د افريقا لويه وچه د طبيعي منابعو له پلوه شتمنه ده. په دې لويه وچه کې د نفتو، سرو زرو، الماسو او مسو کانونه او ګڼ ځنګلونه شته. د افريقا اقتصاد او عايدات زياتره پر کرنه او مالدارۍ ولاړ دي، په دې توګه د افريقا د اقتصاد مختلفې برخې په لاندې ډول مطالعه کوو:

## کرنه او مالداري

د نړۍ د دې لويې وچې کرنيز حاصلات زياتره استوايي او د استوا لاندې نباتات تشکيلوي. لکه چې په

ختیځه افریقا کې د کونځلو او چای بوټي، د سوډان د سیمې په لوېدیځ او د ګیني په پورتنۍ برخه کې زیاتره تیلي نباتات، دافریقا په ختیځو ټاپوګانو کې ناریال، دګیني په سواحلو او نژدې ټاپوګانو کې یې ککو، په لویدیځه افریقا کې ممپلي په مصر، سوډان او تانزانیا کې پنبه، په لوېدیځه افریقا او څه ناځه د دې ساحې په ټولو ټاپوګانو کې کېله او اناناس، په حبشې او کینیا کې قهوه او د مدیترانې د سمندرګي په سواحلو کې انځر، انګور او نورې میوې او ترکارۍ پیداکېږي. د افریقا د لوېې وچې په شمال کې د مدیترانې د سمندرګي په سواحلو کې چې مدیترانه یي اقلیم لري، ژمی یې باراني او معتدل او اوړی یې وچ او تود دی، ځنګلونه هلته لږ او همېشه بهار ونې، لیمو، غنم، وربشې، جوار او انګور ښه حاصل ورکوي. په سوېلي افریقا کې واښه لرونکې دښتې په للمي توګه حاصل ورکوي چې له هغې جملې یې د پنبې او تنباکو حاصلات د یادونې وړدي. د هغې په زیاترو سیمو کې لوبیا غوره کرنیز حاصلات ګڼل کیږي. سره له دې چې د افریقا اقلیم په عمومي توګه د حیواناتو د روزنې لپاره برابر نه دی او مالداري او د څارویو روزنه هم ډېره لږه ده، خو بیایې هم د پسونو او وزو روزنه تر یوې اندازې د یادولو وړ ده. د کبانو ښکار په ځانګړې ډول د اطلس سمندر د هېوادونو په سواحلو کې زیاتره رواج لري. هلته د ښکار وړ د کبانو بېلا بېل ډولونه، لکه: ساردین، تونیاك او مکریل دي.

استوایي سیمې د استوا د کرښې د ۵ او ۱۰ درجو شمالي او سوېلي عرض البلدونو ترمنځ تود او مرطوب اقلیم لري چې د هغه پر اساس په دې سیمه کې ګڼ ځنګلونه منځ ته راغلي دي.

**د ټولګي فعالیت**

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د افریقا د لوېې وچې د وروسته پاتې والي لامل، د افریقا اقتصادی حالت او د کرنې او مالداري په هکله بحث وکړي او پایلې دې نوروته وړاندې کړي.

**پوښتنې**

۱- دافریقا د لوېې وچې د اقتصادي حالت په هکله معلومات ورکړئ.

۲ـ په افریقا کې د مالدارۍ وده څه ډول ده؟

۳ـ په افریقا کې د حیواناتو او د ښکار وړ کبانو د ډولونو نومونه واخلئ.

**له ټولګي څخه بهر فعالیت**

د افریقا د لوېې وچې د مدیترانه یي محصولاتو په هکله خپل معلومات ولیکئ. همدارنګه ووایاست چې ایا افغانستان مدیترانه یي ډوله اقلیم لري؟ که یې لري، نو په کومه سیمه کې؟

# کانونه او صنایع




د افریقا د کانونو، صنایعو او توریزم نقشه

پورتني نقشې ته وگورئ. د افریقا په کومو سیمو کې کوم کاني توکي او صنعتي محصولات شته ؟

د افریقا لویه وچه د طبیعي منابعو له پلوه شتمنه ده، خو له هغو څخه لږه گټه اخیستل شوې ده. شمالي افریقا زیات نفت او گاز لري او سویلي افریقا د الماسو د زېرمو د درلودلو له پلوه په نړۍ کې لومړی مقام لري او د افریقا د عایداتو لویه منبع جوړوي.

الماس ډېر کلک او ډېر قیمتي طبیعي منرال دی چې په عمومي توگه په تور او ژېړ رنگ لیدل کیږي او ځینې یې په سپین، آبي او شین رنگ هم وي. نوموړی منرال له توږلو (صیقل) څخه وروسته د بریلیانت (د توږل شوي الماس) په نوم یادیږي. سره زر د سویلي افریقا له مهمو کانونو څخه دي. همدارنگه هلته د ډبرو د سکرو، کرومو، مگنیزو او یورانیمو زېرمې هم شته. د زایر او زمبابوې هېوادونه د مسو ډېرې ښې زېرمې لري. د اوسپنو کانونه په لایبریا او سویلي افریقا کې شته. په عمومي توگه ویلای شو چې دافریقا لویه وچه د نړۍ په سلو کې ۸۰

الماس، ٤٠ سره زر، ٢٠ سپین زر، ٢٠ مس او ١٤ قلعي توليدوي. همدارنګه کولای شو د ترانسوال مهمې سيمې نوم واخلو چې په هغې کې صنعتي کارخانې او لوی ښارونه ځای پرځای شوي دي او زيات شمېر وګړو ته يې د استوګنې زمينه برابره کړې ده.

د افريقا منځنۍ برخې ګڼ ځنګلونه او صحرايي سيمې زيات کانونه لري. چې لاتر اوسه ورڅخه ګټه نه ده اخيستل شوې. افريقايي هېوادونه کوښښ کوي چې دصنعتي توليداتو حجم لوړ کړي. ځينې هېوادونه د برېښنا او کرنيزو بندونو په جوړولو بوخت دي، د بېلګې په توګه په مصر کې د نيل د سيند دپاسه د اسوان بند او د زمبيا او زمبابوې د هېوادونو ترمنځ د زامبزې د سيند دپاسه د ولتا بند د يادونې وړ دی. د افريقا د لوېې وچې زياتره کاني (معدني) او کرنيز محصولات بهرته صادرېږي. د نړۍ د نورو هېوادونو د صنعتي مرکزونو او کارخانو اومه مواد هم په افريقا کې توليدېږي، ځکه چې په خپله په افريقا کې صنعت دومره پرمختګ نه دی کړی. همدارنګه په افريقا کې د ګرځندوی(توريزم) له صنايعو څخه هم عايدات تر لاسه کيږي. د مصر اهرام او د نورو پخوانيو هېوادونو لرغوني آثار، د افريقا شمال د مديترانې د سمندرګي پر غاړه ښکلي سواحل، د خلکو دودونه او دستورونه او هم کوم ملي مشهور پارکونه چې په افريقا کې شته د توريزم او نړۍ ګرځېدنې ارزښت لري. او د دې لامل کېږي چې خلک له هغو څخه ليدنه وکړي چې طبعاً د اړوندو هېوادونو او سيمو په اقتصاد کې رول لوبوي.

### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د افريقا د لوېې وچې د طبيعي زېرمو او سرچينو په هکله بحث وکړي او دخپل بحث پايلې دې نوروته وړاندې کړي.

### پوښتنې

١– د افريقا د برېښنا بندونه د کومو سيندونو دپاسه جوړ شوي دي؟
٢ـ شمالي او سوېلي افريقا د طبيعي منابعو له پلوه سره پرتله کړئ.
٣ـ په افريقا کې د هغو هېوادونو نومونه واخلئ چې په هغو کې ډېر مس پيداکيږي.
٤ـ د اوسپنې کانونه زياتره دافريقا په کومو سيمو کې شته دي؟
٥ـ د هغو کانونو نومونه واخلئ چې دافريقا په لويه وچه کې پيداکيږي.

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

د افريقا د کانونو، صنايعو او توريزم نقشه مطالعه کړئ، لاندېنيو پوښتنو ته ځواب ورکړئ:
١ـ يورانيم دافريقا په کومو هېوادونو کې شته د هغو نومونه ووایاست؟
٢ـ نفت په عمومي توګه دافريقا په کومو برخو کې موندل کيږي؟
٣ـ د افريقا د صنعتي سيمو نومونه واخلئ.

# مواصلاتي جغرافيه



په لاګوس کې ټرانسپورټ

د افريقا د لويې وچې د مواصلاتو او د هغو د راتلونکي پرمختګ په هکله څه پوهيږئ؟

په افريقا کې مواصلات لرغونې مخينه لري او په مختلفو ډولونو ترسره کيدل. اوس يې تر يوې اندازې په ښه او معاصره توګه پرمختيا کړې ده. په دې لويې وچې کې د استوايي ګڼوځنګلونو، صحرايي تندو بادونو، باتلاقونو او صحراګانو شتوالي خنډونه منځته راوړي دي. د توکو وړل او راوړل د وچې له لارې او په سواحلو کې د بېړيو په وسيله سرته رسيږي.

د افريقا له لوېديځ څخه ختيځ ته لومړنى تګ او راتګ په ۱۸۷۷ م کال کې د هري موټن سټنلي (Harry mouton Stanly) په وسيلې ترسره شوى چې په دريو کلونو کې بشپړ شو. په دغو زياترو برخوکې مواصلات او وړل او راوړل په ابتدايي توګه او معمولاً د اوښانو، خرو او په سختو او پيچلو لاروکې د انسانانو په وسيلې سرته رسېږي. داوسپنو د کرښو جوړونه دشلمې پيړۍ له لومړيو څخه په ځانګړې ډول له لومړۍ نړيوالې جګړې څ خه وروسته ډېره ورو پرمخ تللې، نوځکه په وړلو او راوړلو کې زياتره له سړکونو څخه کاراخيستل کيږي. په افريقا کې داوسپنو د کرښو ټول اوږدوالى ۷۰ زرو کيلومترو ته رسېدلې او ډېره اوږده کرښه يې د ۸۰۰۰ کيلومترو په اوږدوالي قاهره له کېپټاون سره په جنوبي افريقا کې نښلوي. د اوسپنو کرښو په افريقايي نورو هېوادونو لکه: مراکش، الجزاير، تونس او مصر کې پراختيا کړې ده.

سربېره پردې ددې لوېې وچې د زیاترو هېوادونو پلازمېنې، مرکزونه او مشهور ښارونه په عصري هوايي ډګرونو سمبال دي چې له دې لارې څخه د پرمختللو صنعتي هېوادونو او د نړۍ له نورو هیوادونو سره اړیکې ټینګوي.

د قاهرې په ښار کې د ټرانسپورت بهیر



### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړنۍ ډله دې د افریقا د مواصلاتو پر ابتدایې بڼو او دویمه ډله دې دافریقا د مواصلاتو په پرمختللې بڼې بحث وکړي او د بحث پایلې دې نوروته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱ـ د اوسپنو کرښو د شمالي افریقا په کومو هېوادونو کې پراختیا موندلې ده؟
۲ـ د وړلو او راوړلو د ابتدایي بڼې په هکله معلومات ورکړئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د افریقا د مواصلاتي لارو د ستونزو او خنډونو په هکله معلومات ورکړئ.

# د اوبو له لارې وړل او راوړل (حمل او نقل)



دوربان د سویلی افریقا مهم سمندری بندر

ستاسو له نظره افریقا د کومو آبناوو او کانالونو له لارې له سمندرونو سره نښلول شوې ده؟

د افریقا د سیندونو او سمندرونو له لارې وړل او راوړل د اهمیت وړ دي او د اوبو مهمې لارې (طبیعي او مصنوعي) چې په افریقا کې د دوو سمندرګیو یا سمندرونو ترمنځ لارې جوړوي، په لاندې ډول دي:

د سویز کانال (د مدیترانې د سمندرګي او سره سمندرګي ترمنځ چې د جوړښت کار یې په ۱۸۵۶ م کال کې پیل او په ۱۸۶۹ م کال کې بشپړ شو)، د باب المندب آبناء (د سره سمندرګي او عدن خلیج ترمنځ)، د موزمبیق کانال (د مدغاسکر په لویدیځ کې د هند سمندر د دووبرخو ترمنځ) او د جبل الطارق آبنا (د مدیترانې د سمندرګي او اطلس سمندر ترمنځ). ددې لارو څخه یوازې د سویز کانال مصنوعي او نورې ټولې طبیعي دي. د افریقا په لویې وچې کې د خنډونو او ستونزو سره سره او دځمکني جوړښت د نا برابرتیا، داستوا او کانګو په سیمو کې د ځنګلونو د شته والي او د استوایي او صحرایي سوځوونکي تاوده اقلیم له امله چې افریقا زیاتره سیمې شاړې پاتې دي، خو بیاهم د مالونو په وړلو او راوړلو کې آسانتیاوي منځته راغلې دي.

ډېره مهمه سمندري لار د کانګو د سیند په حوزه کې موقعیت لري چې تقریباً د ۱۵۰۰ کیلومترو په اوږدوالي دګټې اخیستنې وړ ده. د اوبو د راټولیدونکې حوزه په استوایي سیمو کې پرته ده چې ټول کال ډېرې اوبه او زیات باران لري. د نیل سیند د اسوان تر بند پورې د سمندري بېړیو دګټې اخیستنې وړ دی. له دې سیند څخه د مصر او سودان دواړه هېوادونه د حمل او نقل لپاره ګټه اخلي. همدارنګه د نایجیر، سنیګال او

زامبزي په سيندونو کې هم دکال په ځينو وختونو کې چې اوبه يې ډېرې وي بېړۍ چلول کيږي.

ستاسې په نظر د سويز کانال کوم سمندرګي (بحيرې) سره نښلوي؟

نن سبا د سمندري بېړيو په وسيلې ورل او راوړل زياتره د مديترانې په بندرونو او د سوېلي افريقا په بندرونو کې ترسره کېږي چې له هغو ځخه د سوېلي امريکا او استراليا د بازارونو په لور سوداګريز مالونه ورل کېږي. همدارنګه سويز کانال چې د اروپا اړيکې يې د ختيځې او سوېل ختيځې افريقا سره ټينګې کړې دي د ځانګړې اقتصادي ارزښت لرونکی دی.


لاګوس د نايجريا پايتخت او سمندري بندر

### د ټولګي فعاليت

د افريقا نقشې ته په پاملرنې سره که وغواړو د بېړۍ په وسيله د عدن له خليج ځخه د مراکش د هيواد ساحلي ښار يعنې کازابلانکا ته سفر وکړو له کومو آبناګانو او کانالونو ځخه تېرېږو؟

### پوښتنې

۱- د افريقا د شمال ختيځ کوم کانال د زيات ارزښت لرونکی دی؟
۲- دجبل الطارق آبنا کوم سمندر او سمندرګي سره نښلوي؟
۳- د افريقا د لويې وچې پخواني مواصلات د هغې د وروستنيو پرمختګونو سره پرتله کړئ.

### له ټولګي ځخه بهر فعاليت

يو کتاب، مجله يا اخبار چې د افريقا د لويې وچې په هکله معلومات ولري مطالعه کړئ او د کتاب نوم د خپرېدو کال او نورې ځانګړتياوې يې وليکئ او د مضمون استاد ته يې ورکړئ.

## د لومړي څپرکي لنډيز

– که چیرې شمالي او سوېلي امریکا د بېلو لويو وچو په توګه په نظر کې ونیسو، افریقا له آسیا څخه وروسته د نړۍ دوېيمه لویه وچه ده. خو که چیرې ټوله امریکا د يوې لويې وچې په توګه په نظر کې ونيول شي، نو په دې صورت کې افريقا له آسيا او امريکا څخه وروسته د نړۍ دريمه لويه وچه شمېرل کېږي.

- افريقا له ۳۰ ميليونه کيلومتره مربع څخه په زيات پراخوالي سره (د اړوندو ټاپوګانو په ګډون) د نړۍ د مساحت په سلو کې ۲۰،۳ په برکې نيسي چې په هغې کې له ۸۰۰ ميليونو تنو څخه زيات وګړي اوسيږي. ډېره شمالي نقطه يې سپينه دماغه(Cape Blanc) او د بن دماغه(Cape Bon) په تونس کې د شمالي عرض البلد د ۳۷ درجو او ۲۰ دقيقو د پاسه او ډېره سوېلي نقطه يې د اګولهاس دماغه(Cape Agulhas) په سوېلي افريقا کې د جنوبي عرض البلد په ۳٤ درجو او ٤۰ دقيقو د پاسه پرته ده.

- ختيځه نقطه يې د ګاردافوی دماغه(Cape Guardafui) په سوماليه کې د ختيځ طول البلد پر ۵۲ درجو او ډېره لوېديځه نقطه يې شنه دماغه (Cape Verde) د سنيګال په ګاونډيتوب کې ده چې د لوېديځ طول البلد پر (۱۷) درجو باندې پرته ده.

- افريقا په استوايي سيمې کې ډېره پراخه ساحه راچاپېره کړې ده چې $\frac{۲}{۳}$ برخه يې د استوا د کرښې په شمال کې او $\frac{۱}{۳}$ برخه يې د استوا په جنوب کې پرته ده.

- دا لويه وچه لکه څرنګه چې د هغې له نوم څخه څرګندېږي يوه حاره وي لويه وچه ده او داستوا کرښه دهغې له منځ څخه داسې تېرېږي چې شمالي او سوېلي برخې يې تقريباً په يو ډول واټن کې پرتې دي.

- د افريقا په لوېديځ کې د اټلانتيک سمندر اوپه ختيځ کې يې د هند سمندر موقعيت لري. په شمال کې د مديترانې د سمندرګي په وسيله د اروپا له لويې وچې څخه او په شمال ختيځ کې د سويز کانال او د سره سمندرګي په وسيله له آسيا څخه بېله شوې ده.

- د افريقا وچه کولای شو په لوېديځې، ختيځې، مرکزي، سوېلي او شمالي افريقا وويشو.

- افريقا د غرونو، صحراګانو او هوارو سيمو لرونکې ده چې ډېر مشهور يې په شمال لوېديځه څنډه کې داطلس غرونه، په تانزانيا کې د کليمانجارو(Kilimanjaro) ځوان غرونه، دالجزاير په سوېل ختيځ کې د اهاګر(Ahaggar) زاړه غرونه، د چاد په شمال لوېديځ کې د تبستي (Tibesti) غرونه او همدارنګه د حبشې لوړې سطحې د يادونې وړ دي.

- په افريقا کې ژورې او لږې لوړې سيمې کمې دي. ددې سيمو ځينې جبه زار او د روغتيا لپاره د نامناسبه اقليم لرونکې دي چې په استوايي سيمو کې پرتې دي او په نورو سيمو کې يې وچې او سوځوونکې دښتې هم شته دي.

- د افريقا صحرا چې د نړۍ لويه صحرا ده، څه ناڅه دافريقا د لويې وچې $\frac{۱}{۳}$ برخه کې يې پراختيا موندلې ده. په تېرو کلونو کې د وچکالۍ له امله نوره هم پراخه شوې ده.

- د افريقا په لويه وچه کې ډېر سيندونه شته چې ډېر مشهور يې د نيل او کانګو سيندونه دي. د نيل سيند د مصر د لرغوني مدنيت د منځته راتللو سبب شوی او اوس هم د کرنيزو سيمو په خړو بولو کې ځانګړی ارزښت لري.

- افريقا دهغه موقعيت له امله چې د ځمکې د کرې پرمخ يې غوره کړی له آستراليا څخه وروسته د نړۍ ډېره توده لويه وچه شمېرل کيږي.

- د افريقا لويې وچې استوايي برخې زيات اورښت لري خو د شمال او جنوب لورته اورښت کمېږي.

- په افريقا کې ۵۵ خپلواکه هېوادونه شته چې په هغو کې مختلف قومونه له بېلابېلو کلتورونو سره ليدل کيږي. په شمالي افريقا کې اسلامي کلتور حاکم دی. په داسې حال کې چې په نورو سيمو کې نور کلتورونه ليدل کيږي.

- د افريقا زياتره خلک په کلو کې استوګنه کوي چې په کرنه او مالدارۍ بوخت دي.

- سره له دې چې په افريقا کې اقتصادي شرايط د ښکيلاک (استعمار) له منځه تللو وروسته مخ په ښه کيدو دی خو تر اوسه هم نفوس او انساني توليدي قواوو په پوره اندازه په ټولو ځايونو کې يو ډول پراختيا نه ده موندلې.

- په افريقا کې زياتې کورنۍ جګړې او وچکالي د کورنيو له پولو څخه د بهر مهاجرتونو سبب کيږي. همدارنګه د افريقا زيات شمېر خلک د بې وزلۍ او لوږې څخه رنځيږي او د ژوند سطحه يې ټيټه ده.

- د افريقا لوی ښارونه لاګوس(Lagos) په نايجيريا کې (د ۹ ميليونو وګړو په درلودلو سره)، کينشاسا (Kinshasa) د کانګو په جمهوريت کې (د ۸،٤ ميليونو وګړو په درلودلو سره) او قاهره په مصر کې (د ۷،۹ ميليونو وګړو په درلودلو سره) دي.

- په افريقا کې مهمې رسمي ژبې: عربي، انګليسي، فرانسوي، پرتګالي، افريقايي، سواحلي او نورې دي.

## د افریقا د خپلواکو هېوادونو د ځینو جغرافیایي ځانګړنو جدول

| ګڼه | هېوادونه | عمومیات | | | | په بېلا بېلو سکتورونو کې د بوختو وګړو فیصدي (۲۰۰۱کال) | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | مرکز | مساحت په کیلومتر مربع | د وګړو شمېر په ۲۰۰٦ کال کې | د وګړو ګڼوالی په یو کیلو متر مربع کې | کرنه | صنعت | خدمتونه |
| ۱ | آنګولا | لواندا | ۱,۲۴۶,۷۰۰ | ۱۲,۱۲۷,۰۷۱ | ۱۰ | ۷۴,۷ | ۸,۴ | ۱۶,۹ |
| ۲ | ایتوپیا | آدیس ابابا | ۱,۱۰۴,۳۰۰ | ۷۴,۷۷۷,۹۸۱ | ۶۸ | ۸۶,۰ | ۲,۰ | ۱۲,۰ |
| ۳ | اریتریا | اسمره | ۱۱۷،۶۰۰ | ۵،۰۲۸،۴۲۷ | ۴۲٫۸ | -- | -- | -- |
| ۴ | جنوبي افریقا | پریتوریا | ۱,۲۲۱,۰۳۷ | ۴۴,۱۸۷,۶۳۷ | ۳۶ | ۱۳,۷ | ۳۱,۸ | ۵۴,۵ |
| ۵ | مرکزي افریقا | بانګی | ۶۲۳,۰۰۰ | ۴,۳۰۳,۳۵۶ | ۷ | ۸۰,۵ | ۳,۰ | ۱۶,۵ |
| ۶ | الجزایر | الجزیره | ۲,۳۸۱,۷۴۱ | ۳۲,۹۳۰,۰۹۱ | ۱۴ | ۲۸,۳ | ۲۹,۸ | ۴۱,۹ |
| ۷ | یوګاندا | کمپالا | ۲۴۱,۰۳۸ | ۲۸,۱۹۵,۷۵۴ | ۱۱۷ | ۸۴,۳ | ۴,۶ | ۱۱,۱ |
| ۸ | بنین | پرتونوو | ۱۱۲,۶۲۲ | ۷,۸۶۲,۹۴۴ | ۷۰ | ۶۳,۴ | ۸,۱ | ۲۸,۵ |
| ۹ | بوتسوانا | ګابرون | ۵۸۱,۷۳۰ | ۱,۶۳۹,۸۳۳ | ۳ | ۴۶,۳ | ۲۰,۴ | ۳۳,۳ |
| ۱۰ | بورکینافاسو | اوګادوګو | ۲۷۴,۰۰۰ | ۱۳,۹۰۲,۹۷۲ | ۵۱ | ۹۲,۴ | ۲,۰ | ۵,۶ |
| ۱۱ | بوروندی | بوجومبورا | ۲۷,۸۳۴ | ۸,۰۹۰,۰۶۸ | ۲۹۱ | ۹۱,۹ | ۲,۵ | ۵,۶ |
| ۱۲ | تانزانیا | دارالسلام | ۸۸۳,۷۴۹ | ۳۷,۴۴۵,۳۹۲ | ۴۲ | ۸۴,۴ | ۵ | ۱۰,۶ |
| ۱۳ | توګو | لومه | ۵۶,۷۸۵ | ۵,۵۴۸,۷۰۲ | ۹۸ | ۶۵,۶ | ۱۰,۰ | ۲۴,۴ |
| ۱۴ | تونس | تونس | ۱۶۳,۶۱۰ | ۱۰,۱۷۵,۰۱۴ | ۶۲ | ۲۸,۹ | ۳۲,۷ | ۳۸,۴ |
| ۱۵ | جیبوتي | جیبوتی | ۲۳,۲۰۰ | ۵۰۶،۲۲۱ | ۲۱٫۸ | -- | -- | -- |
| ۱۶ | چاد | انجامنا | ۱,۲۸۴,۰۰۰ | ۹,۹۴۴,۲۰۱ | ۸ | ۸۳,۲ | ۴,۳ | ۱۲,۵ |
| ۱۷ | رواندا | کیګالی | ۲۶,۳۳۸ | ۸,۶۴۸,۲۴۸ | ۳۲۸ | ۹۱,۹ | ۳,۶ | ۴,۵ |
| ۱۸ | زمبیا | لوساکا | ۷۵۲,۶۱۸ | ۱۱,۵۰۲,۰۱۰ | ۱۵ | ۷۴,۸ | ۸,۵ | ۱۶,۸ |
| ۱۹ | زیمبابوی | هراری | ۳۹۰,۷۵۷ | ۱۲,۲۳۶,۸۰۵ | ۳۱ | ۶۸,۲ | ۸,۱ | ۲۳,۷ |
| ۲۰ | سائوتومه او پرنسیپ | سائوتومه | ۹۶۴ | ۲۰۶،۱۷۸ | ۲۱۳٫۹ | -- | -- | -- |
| ۲۱ | عاج ساحل | یاموسوکرو | ۳۲۲,۴۶۳ | ۱۷,۶۵۴,۸۴۳ | ۵۵ | ۶۰,۰ | ۱۰,۰ | ۳۰,۰ |
| ۲۲ | سنیګال | داکار | ۱۹۶,۷۲۲ | ۱۱,۹۸۷,۱۲۱ | ۶۱ | ۷۶,۸ | ۷,۴ | ۱۵,۸ |
| ۲۳ | سوازیلند | امبابان | ۱۷,۳۶۴ | ۱،۱۲۸،۸۱۴ | ۶۵ | -- | -- | -- |
| ۲۴ | سودان | خرطوم | ۲,۵۰۵,۸۱۳ | ۴۱,۲۳۶,۳۷۸ | ۱۶ | ۶۹,۸ | ۸,۶ | ۲۱,۶ |
| ۲۵ | سومالیا | موګادیشو | ۶۳۷,۶۵۷ | ۸,۸۶۳,۳۳۸ | ۱۴ | ۶۸,۰ | ۱۲,۰ | ۲۰,۰ |
| ۲۶ | سیرالیون | فری تاون | ۷۱,۷۴۰ | ۶,۰۰۵,۲۵۰ | ۸۴ | ۶۷,۷ | ۱۵,۴ | ۱۶,۹ |
| ۲۷ | سیشل | ویکتوریا | ۴۵۵ | ۸۲،۲۴۷ | ۱۸۰٫۸ | -- | -- | -- |

۱- سودان په دوو برخو وېشل شوی دی، خو ملګرو ملتونه د هغې مستند نقشه نه دی ورکړې.

| ګڼه | هېوادونه | مرکز | مساحت په کیلومتر مربع | د وګړو شمېر په ۲۰۰٦ کال کې | د وګړو ګڼوالی په یو کیلو متر مربع کې | کرنه | صنعت | خدمتونه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | عمومیات | | | | په بېلا بېلو سکتورونو کې د بوختو وګړو فیصدي (۲۰۰۱کال) | | |
| ۲۸ | لویدیځه صحرا | العیون | ۲۶۶،۰۰۰ | ۳۹۳،۸۳۱ | ۱.۵ | -- | -- | -- |
| ۲۹ | ګانا | اکرا | ۲۳۸,۵۳۳ | ۲۲,۴۰۹,۵۱۷ | ۹۴ | ۵۹,۴ | ۱۳,۰ | ۲۷,۶ |
| ۳۰ | کامرون | یائونده | ۴۷۵,۴۴۲ | ۱۷,۳۴۰,۷۰۲ | ۳۶ | ۶۹,۹ | ۸,۶ | ۱۲,۵ |
| ۳۱ | کانګو برزاویل | برازویل | ۳۴۲,۰۰۰ | ۳,۷۰۲,۳۱۴ | ۱۱ | ۴۸,۶ | ۱۴,۸ | ۳۶,۶ |
| ۳۲ | کانګو کینشاسا | کینشاسا | ۲,۳۴۴,۸۵۸ | ۶۲,۶۶۰,۵۵۱ | ۲۷ | ۶۸,۰ | ۱۳,۵ | ۱۸,۵ |
| ۳۳ | کینیا | نایروبی | ۵۸۰,۳۶۷ | ۳۴,۷۰۷,۸۱۷ | ۶۰ | ۷۹,۶ | ۷,۰ | ۱۳,۴ |
| ۳۴ | کومورن | مورونی | ۲،۲۳۵ | ۷۳۱،۷۵۵ | ۳۲۷.۴ | -- | -- | -- |
| ۳۵ | کیپ ورد | پرایا | ۴،۰۳۳ | ۴۲۶،۹۹۸ | ۱۰۵.۹ | -- | -- | -- |
| ۳۶ | ګابون | لیبرویل | ۲۶۷,۶۶۸ | ۱,۴۲۴,۹۶۰ | ۵ | ۵۱,۸ | ۱۵,۱ | ۴۲,۱ |
| ۳۷ | ګامبیا | بانجول | ۱۱,۲۹۵ | ۱,۶۴۱,۵۶۴ | ۱۴۵ | ۸۲,۱ | ۸,۰ | ۹,۹ |
| ۳۸ | ګینه | کوناکری | ۲۴۵,۸۵۷ | ۹,۶۹۰,۲۲۲ | ۳۹ | ۸۷,۲ | ۲,۱ | ۱۰,۸ |
| ۳۹ | استوایي ګینه | مالابو | ۲۸،۰۵۱ | ۶۱۶،۴۵۹ | ۲۲ | -- | -- | -- |
| ۴۰ | بیساو ګینه | بیساو | ۳۶،۱۲۵ | ۱،۵۰۳،۱۸۲ | ۴۱.۶ | -- | -- | -- |
| ۴۱ | لسوتو | ماسرو | ۳۰،۳۵۵ | ۲،۱۲۸،۱۸۰ | ۷۰.۱ | -- | -- | -- |
| ۴۲ | لایبریا | مونرویا | ۱۱۱،۳۶۹ | ۳،۳۳۴،۵۸۷ | ۲۹.۹ | -- | -- | -- |
| ۴۳ | لیبیا | تریپولی | ۱,۷۵۹,۵۴۰ | ۵,۹۰۰,۷۵۴ | ۳ | ۱۱,۶ | ۲۲,۱ | ۶۶,۳ |
| ۴۴ | مدغاسکر | تناناریو | ۵۸۷,۰۴۱ | ۱۸,۵۹۵,۴۶۹ | ۳۲ | ۷۸,۰ | ۶,۹ | ۱۵,۱ |
| ۴۵ | مالاوی | لیلونګوه | ۱۱۸،۴۸۴ | ۱۳،۰۱۳،۹۲۶ | ۱۱۰ | ۸۶.۸ | ۵.۱ | ۸.۱ |
| ۴۶ | مالي | باماکو | ۱,۲۴۰,۱۹۲ | ۱۱,۷۱۶,۸۲۹ | ۹ | ۸۵,۸ | ۲,۰ | ۱۲,۲ |
| ۴۷ | مصر | قاهره | ۱,۰۰۱,۴۴۹ | ۷۸,۸۸۷,۰۰۷ | ۷۹ | ۳۰ | ۳۰ | ۴۰ |
| ۴۸ | المغرب (مراکش) | رباط | ۴۴۶,۵۵۰ | ۳۳,۲۴۱,۲۵۹ | ۷۴ | ۶,۰ | ۳۴,۸ | ۵۹,۲ |
| ۴۹ | موریتانیا | نواکشوت | ۱,۰۲۵,۵۲۰ | ۳,۱۷۷,۳۷۸ | ۳ | ۵۵,۱ | ۱۰,۷ | ۳۴,۲ |
| ۵۰ | موریشیث | پورت لویس | ۲،۰۴۰ | ۱،۲۷۴،۱۸۹ | ۶۲۴.۶ | -- | -- | -- |
| ۵۱ | موزمبیق | ماپوتو | ۸۰۱,۵۹۰ | ۱۹,۶۸۶,۵۰۵ | ۲۵ | ۸۲,۶ | ۸,۲ | ۹,۲ |
| ۵۲ | نامیبیا | ویندهوک | ۸۲۴,۲۹۲ | ۲,۰۴۴,۱۴۷ | ۲ | ۴۹,۳ | ۱۵,۷ | ۳۵,۰ |
| ۵۳ | نایجر | نیامی | ۱,۲۶۷,۰۰۰ | ۱۲,۵۲۵,۰۹۴ | ۱۰ | ۸۹,۸ | ۳,۸ | ۶,۴ |
| ۵۴ | نایجریا | آبوجا | ۹۲۳,۷۶۸ | ۱۳۱,۸۵۹,۷۳۱ | ۱۴۳ | ۴۳,۴ | ۶,۸ | ۴۹,۸ |
| ۵۵ | جنوبي سودان | | | | | | | |

**منبع:**

Wolters- Noordhoff, WN Atlas Productions, Groningen, the 2007 Netherlands

## دويم څپرکی

# استراليا




د استراليا د موقعيت نقشه

## د څپرکي عمومی موخې

- هيله ده چې زده کوونکي به د دې څپرکي له لوستلو څخه وروسته لاندې علمي موخې تر لاسه کړي:
- د استراليا او اقيانوسيې د لويې وچې او سوېلي کنګل لويې وچې (انتارکتيکا) د جغرافيايي موقعيت سره بلدتيا.
- د استراليا او اقيانوسيې د لويې وچې د مهمو لوړو ژورو سره بلدتيا.
- د استراليا او اقيانوسيې د لويې وچې د سياسي جغرافيې له حالت سره بلدتيا.
- د استراليا او اقيانوسيې د لويې وچې د بشري جغرافيې سره بلدتيا.
- د استراليا او اقيانوسيې د لويې وچې داقتصادي جغرافيې سره بلدتيا.
- د استراليا او اقيانوسيې له مواصلاتي جغرافيې سره بلدتيا.
- د سوېلي کنګل لويې وچې له اکتشافاتوسره بلدتيا.
- له زده کوونکو څخه هيله کېږي چې د دې څپرکي په لوستلو سره لاندې مهارتي موخې تر لاسه کړي:
- د استراليا، اقيانوسيې او سوېلي کنګل لويې وچې (انتارکتيکا) د جغرافيايي موقعيت پېژندل.
- د استراليا د نقشې پر مخ د مهمو غرونو، سيندونو او سمندرګيو ټاکل.
- د استراليا په لويه وچه کې د نفوسو د جغرافيايي وېش تفسير.
- د استراليا د نقشې پرمخ د نفوسو د جغرافيايي وېش ښودل.
- د اقيانوسيې د نقشې پرمخ د نفوسو د جغرافيايي وېش ښودل.
- د استراليا او اقيانوسيې د نقشې پرمخ د کاني مهمو شتمنيو ټاکل.

# د آستراليا موقعيت




د استراليا طبيعي نقشه

آستراليا د ځمکي د کرې په کومې برخې کې موقعيت لري؟

## خلورخواوې

د آستراليا لويه وچه چې د ځينو په نظر يو لوى ټاپو دى، زياته برخه (کابو $\frac{۳}{۴}$) يې دښته ده. استراليا د ۱۲ او ۴۳ درجو جنوبي عرض البلدونو ترمنځ او د ۱۱۵ او ۱۵٤ ختيځوطول البلدونو ترمنځ موقعيت لري.

د آستراليا په شمال کې د تيمور سمندرګي (Timor Sea)، د ارافورا سمندرګي (Arafura Sea)، د کارپنتاريا خليج (Gulf of Carpentaria) او د تورس آبنا (Str.Torres) موقعيت لري. په ختيځ کې يې د کورل سمندرګی (Coral Sea) او د تسمانيا سمندرګي (Tasmania Sea) او د استراليا په سوېل کې د باس آبنا(Str.Bass) او د استراليا خليج پراته دي. د هند سمندر د آستراليا په سوېل او لوېديځ کې پروت دی. د استراليا ټوله ساحلي کرښه ۲۵،۷٦۰ کيلومترو ته رسېږي.

## د استراليا کشف

کابو پنځوس زره کاله د مخه لومړني خلك آستراليا ته ورغلل. انګريزانو هغوی له (۱۷۸۹) کال څخه د ابورجينالس (Aboriginals) په نامه ياد کړي دي چې دا يوه لاتيني اصطلاح ده او د اصلي يا بومي

اوسېدونکو لپاره کارول کېږي. دا خلک له سوېل ختیځې آسیا څخه راغلي وو.

پنځوس زره کاله مخکې د خاورینو پلونو په وسیله چې د آسیا او آسترالیا په منځ کې وو، له همدې پلونو اولارو څخه خلکو او ځارویو کولای شول له آسیا څخه آسترالیا ته لاړ شي. دا یوه څلویښت زره کلنه پروسه وه. وروسته چې د ځمکې کره توده شوه او کنګلونو په ویلې کېدو پیل وکړ، د سمندر د اوبو سطحه جګه شوه او په دې توګه آسترالیا د یوه ټاپو بڼه غوره کړه. په ۱۵۰ م کال کې د لومړي ځل لپاره یونانیانو د آسترالیا په باره کې لیکنې وکړې. هغوی دا وچه د تیرا استرالیس (Terra Australis) او یا سوېلي غاړو په نامه یاده کړه. خلک د هغې زیات مینه وال شول او ددې نابلدې سیمې په لټه کې شول.

په شپاړسمه او اووه لسمه پېړۍ کې پرتګالیان، هسپانویان او هالنډیان له آسیا سره د سوداګرۍ علاقمند وو. د هغه وخت د سمندري زیاتو مسافرتونو او کشفیاتو په اساس ووچې استرالیا هم د اروپایانو له خوا کشف شوه. په ۱۶۰۶ م کال کې د هالنډیانو لومړنۍ بېړۍ د کارپنټاریا د خلیج(Gulf of Carpentaria) پر غاړه د استرالیا په شمال کې نوې ګیني(New Guinea) ته مخامخ ودریده. ددې بېړۍ کپتان ویلیم جانسن (Willem Janszoon) بېرته جاوا (Java) ته وګرځېد. په ۱۶۱۶م کال یوه بله هالنډي بېړۍ د شارک (Shark) خلیج ته د آسترالیا په لویدیځ کې ورسیده. په وروستۍ یوه نیمه پېړۍ کې هالنډي، فرانسوي او انګلیسي بېلابېلو خلکو آسترالیا ته چې په هغه وخت کې د نوې هالنډ New Holland په نامه یادیده، مسافرت وکړ، خو په هغه وخت کې د آسترالیا د زیاتې پېژندنې اویا مستعمره کولو احساس نه و. لومړنی برتانوی چې آسترالیا ته ورسید د یوې بېړۍ کپتان و د ویلیم دامپیر (William Dampier) په نامه چې په ۱۶۸۸م کال استرالیا ته ورسید.

اِبل تاسمان (۱۶۴۲ میلادي) هالنډی سمندرګرځیدونکی او د استرالیا د لویې وچې یو کاشف



په ۱۷۷۰ م کال جیمز کوک انګلیسي لومړنی اروپایي و چې د آسترالیا ختیځو غاړو او سواحلوته ورسېد او د بوټاني Botany دخلیج (اوسنی سدنيSydney)  له لارې پر ختیځو غاړو تېرشو او هغه یې د نوي سویلي ویلز (New South Wales) په نامه یادې کړې.

د ۱۸۰۰ م کلونو په پیل کې سدني پر یوه سوداګریز مرکز د بدلیدلو په حال کې و. همدارنګه داسترالیا د نورو برخو د کشف لپاره هڅې روانې وې.

د ۱۸۹۰ م کال په شاوخواکې دا نظر چې بېلابېلې مستعمرې پر یوه لوی فدرالي هېواد باندې بدلې شي، منځ ته راغی چې په پای کې د ۱۹۰۱ م کال د جنوري په لومړۍ نېټه په آسترالیاکې ایالتي سیستم را منځ ته شو او په حقیقت کې له انګلستان څخه د آسترالیا د خپلواکۍ ورځ ده.



د بادبان لرونکي کښتی انځور

خو تر ډېره وخته پورې آسټراليا په يوه ډول د انګلستان د مستعمرې په توګه پاتې شوه چې ورو ورو يې د يوه خپلواک هېواد په توګه ځای ونيو.

جيمز کوک(۱۷۷۰ م) انګليسي کپتان او د استراليا د لوېې وچې يوکاشف څخه



## د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د استراليا جغرافيايي موقعيت د نقشې پرمخ تثبيت او وښيي. دويمه ډله دې د هغو هېوادونو او اشخاصو نومونه چې داستراليا په کشف او موندنه کې يې ونډه درلوده، وليکي او نوروته دې يې بيان کړي.

## پوښتنې

لاندې سمې او ناسمې جملې وپېژنئ ؟

۱ـ آستراليا يو لوی ټاپو دی.

۲ ـ آستراليا د هند سمندر په ختيځ کې پرته ده.

۳ـ د آستراليا کشف د زياتو مسافرتونو او سمندري کشفياتو پايله وه، چې د اروپايانو په وسيله ترسره شول.

٤ـ آستراليا خپله خپلواکي په ۱۹۰۱ م کال له انګلستان څخه ترلاسه کړه.

## له ټولګي څخه بهر فعاليت

د انټرنټ يا کتابتون څخه د ګټې اخيستنې په اساس د سمندري کشفياتو او د استراليا د کشف په باره

اتلسم لوست

# طبيعي جغرافيه




د آستراليا طبيعي حالت څرنګه دي؟

آستراليا د نړۍ ډېره کوچنۍ لويه وچه ده چې له ټولو ټاپوګانو سره په مجموعي توګه په سوېلي نيمه کره کې موقعيت لري. د استراليا هيواد له جغرافيايي نظره کولاى شو په څلورو بېلابېلو سيمو ووېشو:

۱ـ منځنۍ دښتې، چې نسبتاً دځمکې لاندې زياتې اوبه لري.

۲ـ لويديځې لوړې (فلات) چې ډېر يې بيابانونه او دښتې دي.

۳ـ ختيځه ساحلي ښېرازه برخه چې په حقيقت کې د ګريت ديواي دينګ د غرونو ختيځه لمن (د اوبو لويه زېرمه) ده.

٤ـ ختيځ غرونه يا لوړې چې په (ګريت ديواي دينګ) مشهور دي.

د آستراليا طبيعي جغرافيه په څو بېلو بېلو برخو کې په لاندې ډول مطالعه کوو:

**غرونه**

- د آستراليا زياتره غرونه په کومو برخو کې پراته دي؟

د آستراليا په ختيځ کې د ګريت ديواى دينګ (Great Dividing) په نوم مشهور غرونه شته چې له ۳۰۰۰ کيلو مترو څخه زيات اوږدوالي لري. د غرونو دا لړۍ د تسمانيا (Tasmania) له ټاپو څخه په سوېل کې پيليږي او د کېپ يورک (Cape York) تر ټاپووزمې په شمال کې غځېدلې دي. د غرونو دا لړۍ

چې د منځني جګوالي لرونکي غرونه او لوړې سطحې لري، د سيندونو په وسيله سره جلا شوي دي. نوموړو غرونو خپلې لمنې د ختيځو سواحلو په لور او د لويديځ په لور تر هوارو سيمو پورې پراخه کړې دي. د ګريت ديواي دينګ له غرونو څخه زيات لوی او واړه سيندونه سرچينه اخلي او آرام سمندر ته توييږي. د استراليا نور غرونه د آستراليا يي الپ (Australian Alps) په نامه شهرت لري چې په حقيقت کې د (ديواي دينګ) د غرونو يوه برخه ګڼل کېږي. دا غرونه چې د آستراليا په سوېل ختيځ کې پراته دي، د نيو سوت ويلز (New South Wales) په سيمو او د ويکتوريا (Victoria) په ختيځې سيمې کې يې لوړې سطحې جوړې کړې دي. ددغو غرونو ډېره لوړه څوکه کوسيسکو (Kosciusko) ده، چې (۲۲۳۱) متره لوړوالی لري.

هغه غرونه چې د استراليا د ختيځو سيمو د اوبو سرچينه ده او پرګڼو ځنګلونو پوښل شوي دي.



د استرالیايي آلپ غرونه د تفریح او استراحت لپاره ښې سیمې لري او هم يې د اوبو ښې سرچینې جوړې کړې دي. په دې سیمه کې ډېر ملي ښونه شته چې د ژمني سپورت (د سکې لوبو) لپاره په استرالیا کې یوازینۍ سیمه ګڼل کېږي.

همدارنګه د فلیندرز (Flinders) غرونه هم د دیوای دینګ د لویو غرونو یوه څانګه ده، چې په سوېلي استرالیا کې پراته دي.



د زده کوونکو د ځوابونو لپاره د آسترالیا او نوي زیلاند سپینه نقشه

د استراليا په منځنيو برخو کې د مک ډونل (Macdonnell) غرونه او د موسګراو(Musgrave) غرونه ديادولو وړ دي. د استراليا په لوېديځ کې هم مشهور غرونه شته چې د هامرسلي(Hamersley) په نامه يادېږي او لوړه څوکه يې بروس (Bruce) ده، چې د ۱۲۰۰ مترو څخه زيات لوړوالی لري. داستراليا په شمال کې مشهورې لوړې سطحې شته چې دکيمبرلي (Kimberley Plateau) او ارنيم (Arnhem Land) په نامه شهرت لري او لوړوالی يې له (۸۰۰) مترو څخه زيات نه دی.

### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې له لاندېنيو فعاليتونو څخه يو پای ته ورسوي او د خپل فعاليت پايله دې نورو ته وړاندې کړي.

۱ـ د استراليا څلور بېلابېلې سيمې د جغرافيې له نظره د نقشې پرمخ تثبيت او وښيي.
۲ـ دګريت ديوای دينګ دغرونو د ځانګو نوم دې واخلي او د نقشې پرمخ دې وښيي.
۳ـ د استراليايي آلپ د غرونو اقتصادي اهميت دې توضيح کړي.
٤ـ د هغو غرونو چې د آستراليا په لوېديځ او شمال کې موقعيت لري، نوم واخلي او د نقشې پرمخ يې وښيي.

### پوښتنې

۱ـ آستراليا په څو اوکومو جغرافيايي سيمو وېشلای شو؟
۲ـ له ملي بڼونو څخه زموږ مقصد څه دی.
۳ـ د آستراليا غرونه دخلکو پر اقتصادي او ټولنيز ژوند څه اغېزه کولای شي؟
٤ـ ستاسو په نظر په آستراليا کې غرونو د هغه هېواد خلکوته څه ستونزې اوڅه اسانتياوې پيداکړې دي؟

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

د آستراليا او نوي زيلاند سپينه نقشه کاپي او يا يې په خپلو کتابچو کې رسم کړئ او تش ځايونه يې ډک کړئ.

# د آسترالیا سیندونه




ستاسو په نظر ولې په آسترالیا کې زیات سیندونه موجود دي؟

په دې لوی ټاپو کې د ډېرو لوړو برخو د شتون او د هغه د ځانګړي جغرافیایي موقعیت له امله چې له هرې خوا یې سمندرونه چاپېر شوي دي، په دې ټاپو کې اورښت زیات دی. له همدې امله پکې ډېر سیندونه بهېږي چې زیاتره یې په آرام سمندر یا د هند په سمندر کې توییږي.

د آسترالیا مهم سیندونه عبارت دی له:

دارلینګ(Darling) ، موري(Murray) ، او لچ لن (Lachlan) څخه. دا سیندونه چې د لوی دیوای دینګ له ختیځو سیمو څخه سرچینه اخلي، په پای کې د استرالیا لوی خلیج ته توییږي. د آسترالیا د سیندونو ډېر لوی سیستم د موري ـ دارلینګ سیستم دی، د موري سیند که څه هم د دارلینګ له سیند څخه لنډ دی خو ددې سیستم له مهمو سیندونو څخه شمېرل کېږي، ځکه د دارلینګ نه ډېرې اوبه لري. د موري د سیند اوږدوالی ۲۵۷۰ کیلومترو او د دارلینګ د سیند اوږدوالی ۲۷۳۰ کیلومترونه رسېږي. ددې سیند د اوبو اخیستونکې حوزې مساحت ۱۸۷۲ زره کیلومتره مربع ته رسېږي. د موریا دویمه لویه څانګه د مورامبیدجي (Murrumbidgee) سیند، چې ۱۶۹۰ کیلومتره اوږدوالی لري، جوړوي.

ټول هغه سیندونه چې د موري ـ دارلینګ په سیستم کې شامل دي نامنظم دي. ددې سیندونو زیاتره اوبه د بارانونو په واسطه او تریوې اندازې پورې د آسترالیا د آلپ د واورو د ویلې کېدو په اساس منځ ته راځي. له همدې امله د اوبو ډېر زیات د بت په دوبي کې وي. یعنې کله چې د اوبو سطحه د موري او دارلینګ په سیندونو کې لوړه شي، پرهوارو دښتو وراوړي او کله هم د تخریباتو او ویجاړولو لامل ګرځي. په دې وخت کې سیندونه له ځانه سره ډېر تخریب شوي توکي او د ډېرو ټوټې وړي، چې د ښړۍ چلولو کارونه له ستونزو سره مخامخ کوي. د موري ـ دارلینګ د سیستم سیندونه اقتصادي اهمیت هم لري، ځکه د هغو له اوبو څخه د ځمکو په خړو بولو کې ګټه اخیستله کېږي.



په شمال او شمال ختيځ کې مهم سيندونه عبارت دي له: ميشل (Mitchell) او فليندرز (Flinders) څخه چې د گريت ديواى دينگ د غره له شمال ختيځ څخه سرچينه اخلي او دکارپنتاريا خليج ته توييږي. همدارنگه د ويکتوريا Victoria، دلی(Daly) او اورد (Ord) سيندونه چې د استراليا په شمال کې بهيږي او د تيمور سمندرگي ته توييږي، د يادولو وړ دي.

د لوېديځې آستراليا ټولې برخې د اوبو له کمښت سره مخامخ دي.

يوازې د هغې ډيرې لرې پرتې سيمې په ځانگړې توگه په خپلو لوړو برخو کې ډېر خوړونه لري، چې د بارانونو په وخت کې د اوبو نه ډکيږي. د کال په زياتره موده کې دا خوړونه وچ وي، ځکه د دې برخې په ډيرو لرو پرتو سيمو کې وچکالي په کال کې تر ۳۰۰ ورځو پورې دوام مومي. د آستراليا د سطحي اوبو سرچينې سره له دې چې زياته برخه يې تر وې دي د خلکو اړتيا نه پوره کوي، خو آستراليا د ځمکې لاندې د اوبو ډېرې زېرمې لري. او له دې اوبو څخه د گټې اخيستنې لپاره بېلابېلې حوزې تر مطالعې لاندې نيول شوي دي چې د صنايعو او څړځايونو د اړتيا وړ اوبه برابروي.



دا اوبه د ډېر منراليزه کيدو له امله د څښلو او د کروندو د خړوبولو لپاره دومره گټورې نه دي. (د ځمکې لاندې اوبو) ډېره لويه حوزه په نړۍ کې هغه پراخه حوزه ده چې دکارپنتاريا له خليج څخه يې د دارلينگ تر حوزې پورې پراختيا موندلې ده. په آسترالياکې په ټوليزه توگه د ۶۵۰۰ په شاوخواکې دځمکې لاندې د اوبو ځاگانې شتون لري.

### د ټولگي فعاليت

زده کوونکي دې په ډلو وويشل شي، په دې هکله دې چې ولې د آستراليا سيندونه غير ثابت رژيم لري بحث وکړي او دخپل بحث نتيجه دې نوروته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱ـ آيا د ځمکې لاندې اوبه په آسترالياکې د خلکو ستونزې رفع کولای شي؟

۲ـ د هغو سيندونو نوم واخلئ چې د آستراليا په شمال او شمال ختيځ کې پراته دي.

۳ـ د آستراليا د سيندونو د اوبو بهير د کال په کوم موسم کې ډېر وي؟

٤ـ ولې د موري ـ دارلينگ د سيندونو سيستم نامنظم دی؟

٥ـ د موري ـ دارلينگ سيندونه کومې اقتصادي گټې لري؟

### له ټولگي څخه بهر فعاليت

د آستراليا د لويې وچې نقشه رسم کړئ او په هغې کې سيندونه په ځانگړې رنگ سره په نښه کړئ او نورو ته يې وړاندې کړئ.

# جهيلونه



د آسترالیا ډېر لوی مالګين جهيل کوم دی؟

له آسترالیا څخه پرته د اقیانوسیې په نورو ټاپوګانو کې مهم جهیلونه نشته. ددې ټاپوګانو د طبیعي جوړښت شرایط داسې دي چې دجهیلونو د پیدایښت لپاره یې لارې چارې نه دي برابرې کړې.

د۵۷ مخ په نقشې کې وګورئ د آسترالیا له مهمو جهیلونو څخه یو د ایر(Eyre) جهیل دی چې په آسترالیا کې ډېر لوی مالګین جهیل دی. داجهیل د آسترالیا د سوېلي ایالت په شمال لوېدیځ کې د سیمپسون(Simpson) د دښتې په سوېل کې پروت دی.

د ایر جهیل له دوو برخو څخه جوړ شوی دی چې یو یې دشمالي ایر لوی جهیل او بل یې د سوېلي ایر کوچنی جهیل دی او د یوه طبیعي کانال په وسیله سره نښتي دي. د ایر جهیل د ملي پارک په سیمه کې پروت دی. د آسترالیا ډېره ژوره نقطه (کابو۱۵ متره د سمندر له سطحې څخه ټیټه) هم په همدې جهیل کې پرته ده.

د ایر جهیل په سوېل کې د تورنس(Torrense) او ګایردنر(Gairdner) په نومونو نور جهیلونه هم شته چې د ځمکې سطحه، یعنې بستر یې هم د مالګې په وسیله پوښل شوی دی. کله د ډېرې تودوخې له امله ددې جهیلونو اوبه بړاس کېږي او وچېږي. د استرالیا نور جهیلونه چې داسترالیا په سوېل لوېدیځ او لوېدیځ کې پراته دي، کارنګي(Carnegie) ، بارلي(Barlee)، مور(Moore) او داسې نور دي.



### د ټولګي فعالیت

د آسترالیا د ۵۵ مخ نقشې ته وګورئ هغه جهیلونه چې نومونه یې واخیستل شول د نقشې پرمخ یې په نښه او وښایاست.

### پوښتنې

۱ـ د آسترالیا ډېره ټيټه نقطه په کوم جهیل کې پرته ده؟
۲ـ د آسترالیا د مهمو جهیلونو نومونه واخلئ.
۳ـ څرنګه د آسترالیا دځینو جهیلونو د ځمکې سطحه او یا بستر د مالګې په واسطه پوښل شوی دی؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د آسترالیا جهیلونه د افریقا له جهیلونو سره پرتله کړئ، توپیرونه او ورته والی یې په څو کرښو کې ولیکئ.

# اقليم




د آستراليا د آب و هوا عمده سيمي

پورتنۍ نقشې ته وګورئ. د آستراليا اقليم څرنګه دی؟

په آستراليا کې د فصلونو بدلون ځکه منځ ته راځي چې د مرغومې د مياشتې په لومړي ورځ لمر د جدي پر دايرې (د سويلي عرض $\frac{1}{2}$ البلد په ۲۳ درجو) باندې عمود لګيږي؛ نو ځکه په سويلي نيمه کره کې اوړی پيل کيږي. څرنګه چې آستراليا په سويلي نيمه کره کې موقعيت لري، نو ځکه هلته د اوړي موسم وي. برعکس په شمالي نيمه کره کې ژمی وي چې دا موضوع د ځمکې د محور د کوږوالي (ميلان) تابع ده. که چېرې په شمالي نيمه کره کې اوړی وي په جنوبي نيمه کره کې به د ژمي موسم وي.

د آستراليا د اقليم يوه ډېره مهمه ځانګړنه هلته د لمر لرونکو ورځو ډېروالی دی. په عمومي توګه آستراليا يو تود هېواد شمېرل کېږي، د جدي کرښه يې له منځ څخه تېريږي تود دوبی او معتدل ژمی لري. د آستراليا زياته برخه تر استوا لاندې اقليم (سب تروپيک) او يوه شمالي برخه يې استوايي اقليم لري. د استراليا د مساحت لږ تر لږه په دريو کې دوې برخې داسې وچه ده چې د کښت او کروندې وړتيا نه لري. د آستراليا په شمال کې، دوبی موسمي بارانونه لري، خو ددې هېواد په سوېل کې اورښت لرونکي بادونه، لوېديځ بادونه دي چې د ژمي په اوږدو کې لګيږي. د آستراليا په ځينو سيمو کې اورښت ډېر لږ دی او امکان لري چې د وچکاليو سبب شي. د آستراليا $\frac{3}{4}$ برخې په شاوخوا په کال کې د ۲۵۰ ملي مترو څخه لږ اورښت لري چې په دې سيمو کې يې کرنه ډېره کمه ده. د آستراليا له $\frac{1}{3}$ نه لږه برخه چې زياتره يې غربي برخې دي په کال کې د ۵۰۰ ملي مترو په شاوخوا کې اورښت لري.

آسترالیا د اب او هوا له نظره کولای شو په څو سیمو وویشو:

۱ـ په شمال کې حاره یي توده اقلیم له مرطوب دوبي سره.

۲ـ معتدله توده اقلیم دیوه وچ فصل سره د کوینزلند په سیمه کې.

۳ـ توده معتدله او مرطوب اقلیم د جنوبي ویلز په څنډه او ویکتوریا کې.

باید یادونه وکړو چې د آسترالیا زیاتې مرکزي او لویدیځې برخې صحرایي اقلیم لري.[۱]




### د ټولګي فعالیت

د آسترالیا د اقلیمي نقشې ته وګورئ او اقلیمي بېلې بېلې سیمې پکې په نښه او وښایاست.

### پوښتنې

۱- د آسترالیا کومې سیمې صحرایي اقلیم لري؟

۲ـ د آسترالیا کومې سیمې په منځنۍ توګه زیات کلنی اوربښت لري؟

۳ـ ولې د آسترالیا اقلیم توده دی؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

په دې هکله چې ولې د آسترالیا موسمونه د شمالي نیمې کرې د فصلونو معکوس دي، معلومات راټول او وړاندې یې کړئ.

(۱) منبع: د پوهاند عارض د اقلیم پېژندنې کتاب ۱۳۸۶.

# د آستراليا سياسي جغرافيه




آستراليا څرنګه اداره کيږي؟

آستراليا مشروطه شاهي فدرالي دولت يا پارلماني پاچاهي ده چې د انګلستان ملکه يې په تشريفاتي توګه د دولت په سرکې ده، خو استراليا په حقيقت کې يو فدرالي دولت دی چې اووه ايالتي پارلمانونه لري او هر پارلمان د هغه ايالت اړوند کارونه سرته رسوي او يو عمومي او ګډ پارلمان دآستراليا په مرکز، يعنې د کانبرا په ښار کې لري چې د هېواد ټولې دندې سرته رسوي. دارنګه حکومت د امريکا له متحده ايالاتو او کاناډا دفدرالي حکومت سره ورته والی لري. ددې هېواد رسمي ژبه انګليسي او پلازمينه يې د کانبرا ښار دی. د نومورې هېواد زياتره خلک د عيسوي دين پيروان دي. که د آستراليا سياسي نقشې ته وګورئ، وينئ چې آستراليا په شپږو ايالتونو او دووسيمو ويشل شوې چې عبارت دي له:

۱ـ نيوساوت ولز(New South Wales) (جنوبي نوی ولز) چې په هغه کې د آستراليا دوه لوی ښارونه يعنې سدني (Sydney) چې د همدې ايالت مرکز دی او کانبيرا(Canberra) چې د آستراليا پلازمېنه ده موقعيت لري. د سدني ښار، داستراليا ډېر لوی ښار، ډېر مهم بندر او ددې هېواد مالي مرکز دی.

۲ـ د ويکتوريا(Victoria) ايالت، چې مرکز يې ملبورن (Melborne) دی.

۳ـ کوينزلند چې مرکز يې بريسبان(Brisban) دی.

٤ـ جنوبي آستراليا چې مرکز يې د ادلايد (Adelaid) ښار دی.

۵ـ لوېديځه آسترالیا چې مرکز یې د پرت (Perth) ښار دی.
٦ ـ تسمانیا چې مرکز یې هوبارت دی اویو ټاپو دی چې د جنوبي نوی ولز په جنوب کې موقعیت لري.
دوې خپلواکې سیمې یې د پلازمېنې کانبرا سیمه او شمالي سیمه ده.
د آسترالیا حکومت په ۱۹۰۱م کال کې خپلواکي ترلاسه کړې ده. د آسترالیا فدرالي پارلمان د ولسي جرګې چې ۱٤۸ غړي لري او د سنا (Senate) د مجلس چې ۷٦ غړي لري، لرونکی دی.

د ملبورن او سدني د ښارونو تصویر



### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د آسترالیا د حکومت په ډول بحث وکړي او د هرې ډلې استازي دې د خپل بحث نتیجه خپلو ټولګیوالو ته بیان کړي.

### پوښتنې

۱ـ آسترالیا په څو ایالتونو ویشل شوې ده، نوم یې واخلئ؟
۲ـ آسترالیا په کوم کال اوله کوم هېواد څخه خپله خپلواکي ترلاسه کړه؟
۳ـ د آسترالیا د حکومت ډول څرنګه دی؟
٤ـ د آسترالیا پلازمېنه په کومې برخې کې موقعیت لري؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

په خپلو کتابچو کې د آسترالیا سیاسي نقشه رسم کړئ او د ایالتونو نومونه یې په اړوندو ځایونو کې ولیکئ.




د آستراليا د نفوسو او نژاد په هکله څه پوهېږئ؟

په دې برخې کې، لومړی د آستراليا د نفوسو او نژاد او وروسته د آستراليا د خلکو له دين او ژبې سره آشنا کېږئ.

د آستراليا لومړني استوګن هغه بوميان وو، چې د آسيا له سوېل ختيځ څخه هغه ځای ته کډوال شوي وو.

کله چې اروپايان له ۱۸۳۰ م کال څخه وروسته آستراليا ته ورغلل په دې لوېې وچې کې له نيم ميليونو څخه لږو بومي خلکو ژوند کاوه. د آستراليا بومي خلك توربخن پوستکی لري چې په (۵۵۰) قبيلو وېشل شوي وو او هره قبيله له څو طايفو څخه جوړه شوې وه. د اروپايي سپين پوستکو د کشفياتو له پيل سره چې دوه سوه کاله دمخه ترسره شول او د هغوی او د آستراليا د بوميانو ترمنځ د جګړې په نبنتو سره د بوميانو د نفوسو شمېر کم شو. په دې وروستيو کې د آستراليا د بوميانو شمېر کابو ٦۰۰۰۰ تنو ته رسيده، خو اوس د هغوی د نفوسو وده د ژوند د ښو شرايطو په اساس يو ځل بيا زياته شوې او شمېر يې زيات شوی دی.

د آستراليا نفوس تر ۱۹۲۰ م کاله پورې ۵ ميليونو تنوته رسيده. غير انګليسي مهاجرينو هم د آستراليا نفوس زيات کړ او په ۱۹٤۵م کال کې يې وګړي (۷،۵) ميليونو تنو ته ورسېدل، په داسې حال کې چې د هغوی يوازې نيم يې انګليسي وو.

د آستراليا نوي مهاجرين له المان، هالنډ، ايټاليا، پولنډ او داسې نورو هېوادو څخه ورغلي دي. په آستراليا کې په ۲۰۰۸ م کال کې له ۲۰ ميليونو څخه زياتو خلکو ژوند کاوه چې د نفوسو زياتوالی يې په منځنی کچه په هرکيلومتر مربع کې ۳ تنو ته رسيده.

آستراليا يو له هغو هېوادو څخه دی چې ډېری خلك يې په ښارونو کې ژوند کوي. د استراليا په سلو کې

د ۸۵ په شاوخواکې وګړي په څو مهمو مرکزونو کې استوګنه لري، په داسې حال کې چې د استرالیا په کلو او بانډو کې پراخې سیمې له اوسېدونکو څخه تشې دي. د استرالیا د وګړو لږ ترلږه له شپږو ملیونو څخه زیات په دوو لویو ښارونو سدني او ملبورن کې ژوند کوي. لکه څرنګه چې د مخه مو یادونه وکړه پرته له بومي خلکو څخه د استرالیا د خلکو په سلو کې د (۹۰) په شاوخوا کې اروپایي سپین پوستکي(په تېره انګلیسان)، کابو ۷ په سلو کې اسیایان او کابو په سلو کې بومیان او نور جوړوي. سربېره پردې په دې ځای کې (دوه رګه) یا ګډ نژاد چې له سپین پوستکو او بومي خلکو څخه جوړشوي، د یادولو وړ دی.

د استرالیا د بومي (ځايي) ماشومانو یو تصویر



### د ټولګي فعالیت

د آسترالیا د نفوسو دګڼوالي نقشې ته وګورئ او دې لاندې پوښتنوته ځواب ورکړئ:

۱ـ په عمومي توګه د آسترالیا په کومې برخې کې د نفوسو ګڼوالی زیات دی؟

۲ـ ستاسو په نظر ولې ځینو ځایونو کې د نفوسو زیاتوالی زیات دی؟

### پوښتنې

۱ـ د آسترالیا بومیان له کوم ځای څخه آسترالیا ته ورغلي او اوس د هغو شمېر څو تنو ته رسېږي؟

۲ـ د آسترالیا د اوسنیو نفوسو اکثریت کوم خلک تشکیلوي؟

۳ـ د آسترالیا نفوس او مساحت له افغانستان سره پرتله او خپل نظر د هغو په باره کې ووایاست.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د آسترالیایي بومیانو د نفوسو او اروپایي سپین پوستکو مهاجرینو د ځانګړنو په هکله معلومات را ټول کړئ او خپلو ټولګیوالوته یې توضیح کړئ.

# دين او ژبه




په آستراليا کې کوم دين ډېر پيروان لري؟

په آستراليا کې زياتره خلک عيسوي دي. له عيسوي دين څخه پرته د ابتدايي مذهبونو پيروان، بت نمانځونکي او نور هم دآستراليا او اقيانوسيې په ټاپوګانو کې ليدل کيږي.

د اسلام د دين پيروان هم شته چې په اقليت کې دي، يو شمېر يهوديان هم په دې لويه وچه کې مېشت دي.

د آستراليا رسمي ژبه انګليسي ده. په استراليا او د اقيانوسيې په نورو ټاپو ګانو کې بېلابېلې ژبې شته چې ځينې دا ژبې له يوې ريښې څخه دي او ځينې يې هم يو له بله څخه ډېر توپير لري.

بايد يادونه وکړو چې د انګليسانو اوږده استوګنه ددې لويې وچې په غوره ټاپوګانو او په ځانګړې توګه په آستراليا او نوي زيلانډ کې ددې سبب شوې چې انګليسي ژبه په اقيانوسيه او په ځانګړې توګه په آستراليا او نوي زيلانډ کې عموميت ومومي. د اقيانوسيې د ټولو بومي ژبو په منځ کې (پولي نزي) زيات ويونکي لري.

په آسترالیاکې د دینونو او د هغو د پیروانو په هکله د اضافي معلوماتو جدول

| دین | پیروان یې په فیصدي |
|---|---|
| عیسویت | ٦٨ |
| بودیزم | ۲,۱ |
| اسلام | ۱,۷ |
| هندوایزم | ۰,٤ |
| نور مذهبونه | ۲۷,۸ |

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې په آسترالیا کې د دینونو په هکله او دویمه ډله دې د ژبو په باره کې بحث وکړي او د بحث پایله دې خپلو ټولګیوالو ته بیان کړي.

### پوښتنې

۱- د آسترالیا رسمي ژبه کومه ده او ستاسو په نظر ولې دا ژبه د رسمي ژبې په توګه ټاکل شوې ده؟
۲ـ د آسترالیا د دینونو د نقشې څخه په ګټې اخیستنې سره وواياست چې کوم دین په آسترالیا کې زیات پیروان لري او ولې؟
۳ـ ستاسو په نظر په آسترالیا کې د اسلام دین پیروان اصلاً له کومو اسلامي هېوادونو څخه هغه ځای ته مهاجر شوي دي؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د خپلو دوستانو او خپلوانو په مرسته په آسترالیا کې د مهاجرو افغانانو په هکله معلومات ترلاسه کړئ چې افغانان او نور مسلمانان د خپلو دیني فرایضو د اداکولو لپاره هلته څه امکانات لري؟

# اقتصادي جغرافيه




د استراليا د اقتصادي پرمختگ نښې نښانې په څه کې وينئ؟

آستراليا چې لويديځ کلتور لري، داسې هېواد دی چې د آزاد بازار د اقتصاد سيستم لري او پرمخ تللی هېواد دی. ديوه تن کلنی عايد يې په منځنی توگه له ۲۳ زرو امريکايي ډالرو څخه زيات دی. ددې هېواد د چټک اقتصادي پرمختگ نښې په دې کې دي چې له يوه کرنيز حالت څخه په چټکی سره د صنعتي کېدو په حالت کې دی. په دې معنا چې په ۱۹۷۵م کال کې په سلو کې کابو ۱۵ خلک د کرنې په برخه کې بوخت وو او په اوسني وخت کې دا شمېره په سلوکې ۳ ته رسېږي. ددې هېواد د فعالو نفوسو د پاتې برخې په سلو کې ۲۶ په صنعت او په سلو کې ۷۱ د خدماتو په برخه کې بوخت دي.

د کرنې د ځمکې او د اوبو له کمښت سره سره، آستراليا د کرنيزو غذايي توکو له مخې، په ځان بسيا هېواد دی. لرې وگړو او د ډول ډول اقليمی لرونکو سيمودرلودل د دې هېواد په ځان بسيايني سره مرسته کړې ده.

د غنمو کرنې د آستراليا په سلوکې ۶۰ کروندې ځانته اختصاص او بېلې کړې دي. د کښت سيمه يې په ويکتوريا او نيو ساوت ولز کې د ختيځو لوړو غرونو لويديځې جلگې دي. همدارنگه، زيتون او انگور د مديترانه يي اقليم په ساحه کې له جنوب لويديځ او ځينو جنوب ختيځو برخو او د معتدلو برخو کرنيز محصولات لکه: جوار، شفتالو، مڼې او ناک د تسمانيې د ټاپو له جنوب ختيځو سواحلو څخه لاس ته

راځي. آسترالیا ته مالداري له کرنې څخه غوره ده. ډېر کلونه د آسترالیا اقتصادي بنسټ په مالدارۍ تکیه درلوده. طبیعي پراخ څر ځایونو او چمنونو چې د آسترالیا د ټول مساحت په سلو کې کابو ۳٤ سیمې پوښلي دي، په دې لوی ټاپوکې د مالدارۍ د بشپړ رواج او پراختیا سبب شوي دي. په جنوب ختیځ کې د مورې او دارلینګ د سیندونو شاوخوا سیمې، د څارویو د ساتلو لپاره د څر ځایونو غوره سیمې دي. دې سیمو وروسته د پسونو د روزنې د مرکز په توګه پراختیا موندلې او اوس په نیو ساوت ویلز کې د ۱۷۵ میلیونو پسونو په شاوخوا کې پیداکېږي. وروسته د څارویو د ساتلو مرکزونه ، د کوینزلنډ سیمو ته لېږدیدلې دي. د اوبو د کمښت له امله، د پسونو روزنه د لوېدیځ لور ته لږ ه شوې او په مقابل کې یې د غوایانو ساتل زیاتیږي.



مالداري د آسترالیا له اقتصادي غوره فعالیتونو څخه ده

آستراليا په نړۍ کې د وړيو د توليدوونکو او صادروونکو د لويو هېوادونو له ډلې څخه ده چې محصولات يې جاپان، المان او فرانسې ته صادرېږي. همدارنګه استراليا د غوښې مهم صادرونکی هېواد هم دی چې د غوښې صادرات يې د امريکا متحده ايالاتو، انګلستان، جاپان او کاناډا ته ترسره کېږي.

په آستراليا کې د يوې کروندې تصوير



قند هم د دې هېواد له سترو صادراتي توکو څخه ګڼل کېږي، همدا راز دغه هېواد د نړۍ د غنمو د صادرونکو هېوادونو څخه دی چې د غنمو محصولات يې د روسيې، چين او منځني ختيځ هېوادو ته صادرېږي.

په آسترالياکې د انګورو د محصولاتو تصوير



### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د آستراليا د نقشې څخه په کار اخيستلو سره د ځږ ځايونو او د کرنيزو برخو نومونه واخلي او هغه دې د نقشې پرمخ وښيي.

### پوښتنې

۱– ولې مالدرای په آسترالياکې زياته وده کړې ده؟
۲ـ کوم ډول کرنيز محصولات په معتدلو سيمو کې موندل کېږي؟ نوموړې سيمې د نقشې پرمخ هم وښيي.
۳ـ د آستراليا د ډېرو مهمو کرنيزو او د مالداري محصولاتو نومونه واخلئ.

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

د آستراليا د اقتصادي پرمختګ دعواملو په هکله معلومات راټول او وړاندې کړئ.

# کانونه او صنایع




د آسترالیا کانونه او لارې

په آسترالیا کې د کانونو او صنایعو حالت څرنګه دی؟

آسترالیا د کاني توکو یو غوره تولیدونکی او صادرونکی هېواد ګڼل کیږي. په ۱۸۵۱م کال کې په استرالیا کې د سرو زرو شتون د انګلیسانو او نورو اروپایانو پاملرنه ځانته راواړوله او د هغو زیات شمېر استرالیا ته مهاجر شول. دا هېواد په نړۍ کې د اوسپنې د تولید دویم هېواد او همدا ډول د بوکسیت چې د المونیم د تولید لپاره ورڅخه ګټه اخیستل کیږي، ډېر لوی تولیدوونکی دی. نور کاني توکي چې په آسترالیا کې ایستل (استخراج) کیږي عبارت دي له: سرو زرو، نکل، مس، سرپ او یورانیم څخه. آسترالیا د امریکې د متحده ایالاتو څخه وروسته په نړۍ کې د یورانیمو دویمه لویه زیرمه په واک کې لري. دآسترالیا د نفتو ډېره مهمه سیمه د باس په آبنا (Bass Strait) کې ده چې د تسمانیې د ټاپو او ویکتوریا په منځ کې پرته ده. دا هېواد کولای شي

د آسترالیا له صنایعو څخه یو تصویر



خپلې يوځه نفتي اړتياوې پوره کړي. په همدې سيمې کې د طبيعي ګازو توليدات هم ترسره کېږي. آستراليا د ډېرو سکرو د صادرونکو هېوادونو له ډلې څخه هم دی.

له دويمې نړيوالې جګړې څخه وروسته (د ۱۹۵۰ م کال څخه وروسته) د آستراليا صنايعو زيات پرمختګ کړی دی. په ۱۹۹۹ م کال کې ددې هېواد په کورنيو توليداتو کې د صنايعو برخه په سلو کې شپږ ويشتو ته رسيدلې وه. د دې هېواد لرغونې صنايع د حيواني محصولاتو پربنسټ جوړ شوي وو، خو په اوسني حالت کې د آستراليا د استهلاکي مالونو په صنايعو او درنو صنايعو کې چټکه وده ليدل کيږي. د بېلګې په توګه په دې وروستيو ۳۰ کلونو کې د دې هېواد د فولادو توليد شپږ برابره زيات شوی دی. د اوسپنې او فولادو صنايع هم زياتره په نيو ساوت ولز کې ځای پر ځای شوي دي. له فولادو، د ودانيو له صنايعو او کاغذ جوړولو پرته، نور غوره صنايع يې د غذايي توکو، کيمياوي توکو او ټوکرانو څخه عبارت دي. د آستراليا صنايع زياتره په هغو ځايونو کې متمرکز او ځای پرځای دي چې د صنايعو د منځته راتلو لپاره پکې لومړني امکانات برابردي او په ځانګړې توګه په هغو ځايونو کې چې د خرڅلاو او لګښت لپاره پکې لوی بازارونه شته دي. د استراليا په صادراتو کې پر غنمو، غوښو او وړيو سربيره چې مخکې مو ورځنی يادونه وکړه، د ډېرو سکاره، سره زر او ماشين آلات شامليږي. چې د ۶۹ ميلیارده ډالرو په مجموعي ارزښت سره جاپان، د اروپا اتحاديې، د امريکا متحده ايالاتو، چين، او نورو آسيايي هېوادونو ته صادر شوي وو. د آستراليا واردات زياتره ماشين آلات، ترانسپورتي وسايل، کمپيوټر، مخابراتي وسايل، د دفترونو سامان آلات، د خاورو تېل او پټرولي محصولات دي چې د ۷۷ ميلياردو ډالرو په ارزښت په ۲۰۰۰ م کال کې د اروپا له اتحاديې، د امريکا له متحده ايالاتو، جاپان او نورو آسيايي هېوادونو څخه وارد شوي وو.

### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي، لومړۍ ډله دې د درس د متن او نقشې څخه په ګټې اخيستوسره د کانونو په هکله او دويمه ډله دې د استراليا د صنايعو په هکله بحث وکړي او د خبرو پايلې دې خپلو ټولګيوالوته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱ـ يورانيم د استراليا په کوم ايالت کې شته دي؟
۲ـ د اوسپنې کانونه زياتره د استراليا په کومه برخه کې دي؟
۳ـ د استراليا غوره صنعتي سيمې په کوم ځای کې دي؟

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

د استراليا د وارداتو او صادراتو په هکله معلومات راټول او ټولګيوالو ته دې وړاندې کړي.

# مواصلاتي جغرافيه



د آسترالیا په مرکزي جلګوکې د ریل یو تم ځای

دآسترالیا ځمکنی، د اوبو او هوایي ترانسپورت په کومه سطحه کې دی؟

حمل او نقل په آسترالیاکې د واټن له ستونزې او د نفوسو د نابرابرګڼوالي سره مخامخ دی. له بلې خوا د پراخو دښتو او د هېواد د ډېر پراخوالي له امله نه دی توانیدلی چې په دې ځمکه کې د پراخو شبکو د جوړولو مخه ونیسي. د ریل لومړنی کرښه په ۱۸۵٤ م کال کې د ملبورن او پورت ـ ملبورن ترمنځ ایستل شوی ده. په آسترالیاکې د ٤۰ زرو کیلومترو په شاوخواکې د اوسپنې لارې (د ریل کرښې) او له ۹۰۰ زرو کیلومترو څخه زیاتې لویې لارې او د موټرو لارې شته دي. د دې لارو زیاتره د آسترالیا په ختیځو، سوېلي او سوېل لوېدیځو برخو کې جوړې شوې دي. د دې هېواد د اوسپنې دلارې ختیځه څانګه چې له شمال څخه سوېل خواته غځېدلې ده د بریسبان، سدني او ملبورن ښارونه له یوبل سره نښلوي. د اوسپنې دا لاره په سوېل کې لوېدیځ لورته غزېدلې ده او د ادلاید څخه له تېرېدو وروسته د پرت بندرته د آسترالیا په سوېل لوېدیځ کې پای ته رسېږي.

د آسترالیا له ډېرو سیندونو څخه د هغو د چټک بهیر له امله د اوبو د کورنیو لارو لپاره ګټه نه اخیستل کېږي، خو د آسترالیا په سوېل کې له جهیلونو او تریوه حده پورې له سیندونو څخه د حمل او نقل لپاره ګټه اخیستل کېږي. آسترالیا د بېړۍ چلولو ٥۲ بندرونه لري، چې له هغې جملې څخه سډني، ملبورن،

نیوکاسل، ادلاید، بریسبان، هوبارت او نور د یادولو وړ دي. د آسترالیا بندرونه داوبو له لارې نه یوازې د توکو د وړلو او راوړلو لپاره په نړۍ کې اهمیت لري، بلکې د آسترالیا په دننه کې هم د حمل او نقل لپاره د بېلابېلو ایالاتو په منځ کې د استفادې وړ دي. د آسترالیا هوایي لارو د دویمې نړیوالې جګړې څخه وروسته زیاته پراختیا موندلې ده. د آسترالیا هوایي ترانسپورت د هغو ښارونو تر منځ چې سره ډېر واټن لري د ډېر اهمیت وړ دی او ښه پرمختګ یې کړی دی. ټول لوی ښارونه یې هوایي ډګرونه لري. په دې هېواد کې ٤٤١ لوی او واړه هوایي ډګرونه شته چې له لازمو آسانتیاوو څخه برخمن دي.

**د ټولګي فعالیت**

زده کوونکي دې په درې ډلو ووېشل شي، د آسترالیا د ځمکنیو، اوبیزو او هوایي مواصلاتي لارو په هکله دې سره بحث وکړي او د خپل بحث پایله دې خپلو ټولګیوالوته وړاندې کړي.

**پوښتنې:**

۱ـ آسترالیا څو ډوله مواصلاتي لارې لري؟ د هغو نومونه واخلئ.
۲ـ ستاسو په نظریه آسترالیا کې کوم ډول ترانسپورت ښه پرمختګ کړی دی؟
۳ـ ستاسو په نظر د توکو وړل او راوړل د کوم ډول ترانسپورت په وسیله ارزانه تمامیږي او ولې؟

**له ټولګي څخه بهر فعالیت:**

د آسترالیا د مواصلاتو په هکله له انټرنټ، او د کتابتون څخه په ګټې اخیستنې سره یو مخ مقاله ولیکئ.

# اقيانوسيه




د آستراليا او اقيانوسيې د لوېې وچې نقشه

د اقيانوسيې ټاپوگان په كوم سمندر كې موقعيت لري؟

اقيانوسيه د ډېرو ټاپوگانو نوم دی چې په آرام سمندر كې موقعيت لري. كه څه هم آرام سمندر په يوازې توگه د ځمكې د كرې د مساحت په دريو كې يوه برخه نيولې ده، خو د اقيانوسيې ټاپوگان له (۱۳۰۰۰۰۰) كيلومترو مربع څخه لږ مساحت لري.

د نوي گيني ټاپو (Papua New Guine) په سلو كې د ۶۰ په شاوخواكې او نوي زيلاند (New Zeland) په سلو كې ۲۰ د اقيانوسيې مساحت په بركې نيولى دى. او پاتې په سلو كې ۲۰ نوروټاپوگانو پورې اړه لري. د اقيانوسيې ټاپوگان د جغرافيې له نظره په لاندې درې ډلو ويشلي دي:

**ملانزيا** (**Melanesia**) چې د آستراليا په شمال او ختيځ او د استوا كربنې په سوېل كې پرته ده او د تورانو د ټاپوگانو معنا وركوي. نوي گينه د دې ټاپوگانو له ډلې څخه ده.

ـ د استوا د كربنې په شمال، د فلپين په ختيځ او د جاپان په سوېل كې نور ټاپوگان موقعيت لري چې هغوته **ميكرونيزيا**(**Micronesia**) يا كوچني ټاپوگان ويل كېږي.

د آرام سمندر په مركزي برخوكې يو شمېر نور ټاپوگان پراته دي چې د **پلُی نزيا** (**Polynesia**) يا د زياتو ټاپوگانو په نامه يادېږي. ددې ټاپوگانو له جملې څخه هاوايي په شمال او نوي زيلاند په سوېل كې د يادولو وړ دي. اوقيانوسيه د جغرافيايي عرض او سمندري هوا تر اغېزې لاندې، توده او سمندري اقليم لري. په اقيانوسيه

کې د لنده بل او تودوخې کچه اکثراً زیاته وي او په ټول کال کې یو ډول ده. گومان کېږي چې د اقیانوسیې لومړني اوسېدونکي په زرگونو کاله د مخه له آسیا څخه هغه ځای ته مهاجر شوي دي. د اقیانوسیې ټاپوگانو ته د رسېدلو لپاره لومړنیو مهاجرینو له کوچنیو بېړیو څخه گټه اخیستې ده او په هغو ځایونو کې چې د پله جوړولو امکان درلوده پل یې جوړ کړی دی. د څو بېړیو په اوږدو کې خلک لږ لږ په بېلابېلو ټاپوگانو کې مېشت شول. په ۱۷۰۰ او ۱۸۰۰ میلادي کلونو کې اروپایي کاشفینو د اقیانوسیې له ډېرو ټاپوگانو څخه لیدنه وکړه او د ملانزیا، پلُی نزیا او میکرونزیا د خلکو ظاهري او څرگند توپیر د هغو پاملرنه ځانته راوگرځوله. د دې ټاپوگانو اوسېدونکي معمولاً بیلا بیلې ژبې، دینونه او دود او دستورونه لري. وایي چې هغه خلک چې په دغو پورتنیو درېو سیموکې ژوند کوي له بېلابېلو نژادونو سره تړاو لري او ان دا ویل کیږي چې د ملانزیا ځینې اوسېدونکي د افریقا او هندي تورپوستکو مهاجرو څخه دي.



د ساموا یو بومي اوسیدونکی چې زوی ته د کبانو د ښکار د یادولو په حال کې دی.

سربېره پردې د ټاپوگانو تر منځ هم مهاجرتونه ترسره شوي، اروپایان او آسیایان هم په خپلو مهاجرتونو کې له ځایي خلکو سره گډ شوي دي.

- ملانزیان د اقیانوسیې د ډېرې تیتې ونې لرونکي خلک دي، تورپوستکی لري.
- میکرونزیان له ملانزیانو څخه یوڅه جگه ونه او روښانه پوستکي لري.
- پلُی نزیان نسبت نورو ته ډېره جگه ونه لري او د یادوشوو درېو نژادونو تر منځ ډېر روښانه پوستکي لري.

### د ټولگي فعالیت

زده کوونکي دې په درېو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د ملانزیا ټاپوگان، دویمه ډله دې د پلی نزیا ټاپوگان او دریمه ډله دې د میکرونزیا ټاپوگان د نقشې پرمخ او وښیي.

### پوښتنې

۱ـ د اقیانوسیې د درېو لویو ټاپوگانو نومونه واخلئ.
۲ـ د اقیانوسیې د ټاپوگانو خلک له نژادي پلوه په څو ډلو وېشل شوي دي؟ د هغو نومونه واخلئ.

### له ټولگي څخه بهر فعالیت

د اقیانوسیې د نقشې له مخې د اقیانوسیې غوره ټاپوگان لېست کړئ.

# اقتصادي حالت



ناریال د اقیانوسیې ډېر غوره محصول دی

د اقیانوسیې په ټاپوګانو کې کرنیز حالت څرنګه دی؟

د اقیانوسیې د ټاپوګانو ډېر غوره کرنیز محصول ناریال دي. کېله او د ډوډۍ رنګه مېوه هم د دې ټاپوګانو د ونو د غوره محصولاتو څخه دي. ککائو، مرچ او قهوه یې هم د غوره کرنیزو محصولاتو له ډلې څخه شمېرل کیږي. په ټولو ځایو کې یې د خلکو ژوند د کرنې له لارې پرمخ وړل کېږي. په اقیانوسیې کې دودیزه کرنه رواج لري او ځمکې د کورنیو له خوا کرل کېږي. په ډېرو ټاپوګانو کې د خلکو د کښت او کب نیولو حق خوندي شوی دی. په اوسني وخت کې د اقیانوسیې د ټاپوګانو د کروندو زیاته برخه د اروپایانو په واک کې ده.

خو ځینې کروندګر د خپلو ځمکو خاوندان دي. په ځینو کلو کې د کرنې ځمکې د یوه کلي پر ټولو خلکو پورې اړه لري او ټول پکې ګډون لري. د اقیانوسیې ډېر پرمخ تللی هېواد نوی زیلانډ دی.

د ډوډۍ ونه



د ټولو ټاپوګانو یوازینی صادراتي محصول کوپرا (Copra) د ناریال مغز دی. د ناریال له غوړو څخه د نباتي غوړیو او صابون په جوړولو کې هم ګټه اخیستل کیږي او نوره برخه یې د نړۍ بېلابېلو هېوادونو ته صادریږي. د کیلې صادرات هم په دې ټاپوګانو کې له ځانګړي اهمیت څخه برخمن دي.

د میکرونزیا او ملانزیا په ټاپوګانو کې د فسفاتو زیرمې مخ په تمامیدو دي. له دې کانونو څخه هر کال ۲،٦ میلیون ټنه ګټه اخیستل شوې ده.

د کاني توکو له نظره ډېر بډای ټاپو، نوې کالدونیا ده چې په سلو کې ۹۰ صادرات یې کاني توکي او فلزات جوړوي. د اقیانوسیې د تولیدي فلزاتو له ډلې څخه نکل، کروم، اوسپنه، کوبالت، منګنیز، سره زر او مس دي.

د اقیانوسیې ډېره غوره صنایع د کرنیزو محصولاتو بنسټ لري. د ناریال د غوړي، صابون، بوره او کنسرو جوړول له دې ډلې څخه دي. د سلیمان په ټاپوګانو، نوې ګیني او لویدیځې ساموآکې د ترکاڼۍ د لرګیو د ګټې اخیستنې لپاره د اره کولو کارخانې جوړې شوې دي. د میکرونزیا او پلي نزیا په ټاپوګانو کې د صنعت وده ډېره لږه ده او خلک یې زیاتره په لاسي کارونو لګیا دي.

د ساده او لومړنیو بېړۍ جوړولو د صنایعو یو تصویر



پاروېي کوچنۍ بیړۍ داقیانوسیې په سیمې کې د وړلو او راوړلو لپاره دودیزه وسیله ده او د کلو خلک له هغو څخه د لنډو مسافرتونو او د مالونو د وړلو او راوړلو لپاره ګټه اخلي. د اوږده واټن مسافرتونو لپاره د بادباني او یا ماشین لرونکو بېړیو څخه ګټه اخیستل کیږي. په اوسني وخت کې د اقیانوسیې خلک له یو بل سره او یا د نړۍ له نورو هېوادوسره د اړیکو لپاره بېړیو او هوایي الوتنو ته اړتیا لري.

له سمندری ترانسپورټ څخه یو تصویر



### د ټولګي فعالیت

د اقیانوسیې د ټاپوګانو د کرنیزو تولیداتو په هکله دوه کسیزه بحث وکړئ او د خپلو خبرو پایله خپلو ټولګیوالوته بیان کړئ.

### پوښتنې

۱ـ د اقیانوسیې د ټاپوګانو ډېر غوره کرنیز تولیدات کوم دي؟
۲ـ د اقیانوسیې د ټاپوګانو د ډېرو غوره کاني توکو نوم واخلئ.
۳ـ د اقیانوسیې د ټاپوګانو د صنایعو بنسټ کوم توکي جوړوي؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

د اقیانوسیې په ټاپوګانو کې د حمل او نقل، مواصلاتي امکاناتو او خنډونو په هکله معلومات راټول او سبا یې په ټولګي کې وړاندې کړئ.

# نوی زیلاند( New Zealand )




د اقیانوسیې مشهور هېواد نوی زیلاند څرنګه جغرافیایي ځانګړنې لري؟

د نوي زیلاند هېواد په اقیانوسیې پورې اړوند دی چې د بحر الکاهل په جنوب لوېدیځ کې د ۱۶۰۰ کیلومترو په واټن د استرالیا په ختیځ کې موقعیت لري. دا هېواد د شمالي ټاپو او جنوبي ټاپو په نومونو دوه اصلي ټاپوګان او یو شمېر نور واړه ټاپوګان لري. د تسمانیا سمندرګي دا خاوره له استرالیا څخه بېله کړې ده. جنوبي ټاپو ډېر وسعت لري او د کوک آبنا(Cook Strait) دا دواړه ټاپوګان له یوبل څخه بېل کړي دي.

د نوي زیلاند مساحت نژدې درې پرڅلورو برخو غرونو او غونډیو پوښلې ده چې ډېر مهم یې جنوبي الپونه (South Alps) نومیږي او د شمال ختیځ ـ جنوب لوېدیځ پر لور د سمندرګي په اوږدوکې غځېدلي دي.

د جنوبي الپونو ډېره لوړه څوکه د کوک څوکه ده، چې د ۳۷۰۰ مترو څخه زیات لوړوالی لري.

څرنګه چې نوی زیلاند زیات وسعت یا لوېوالی نه لري نو اوږده سیندونه هم پکې نه لیدل کېږي. د وایکاتو (Waikato) او کلوتا(Clutha) سیندونه د دې هېواد له نامتو سیندونو څخه دي. د نوي زیلاند زیاتره سیندونه لنډ دي او زیاته چټکتیا لري او له همدې امله د برېښنا د تولید او تامین لپاره ډېر مناسب دي. ددې هېواد له سیندونو څخه په اوبولګولو کې هم ګټه اخیستله کیږي. د استرالیا په خلاف نوی زیلاند د ډېرباران لرونکی هېواد دی او په ټولیزه توګه معتدل او سمندري مرطوب اقلیم لري.

د نوي زيلاند بشري او اقتصادي حالت څرنگه دی؟

نوی زيلاند له ۲۷۰ زره کيلومتره مربع څخه زيات وسعت لري. دغه هېواد په ۲۰۰۶ م کال کې د څلورميليونو څخه زيات وگړي درلودل. د نفوسو گڼوالی يې په هر کيلومتره مربع کې ۱۵ تنو ته رسيږي. ددې هېواد په سلوکې اويا خلک اروپايي اصله دي، چې زياتره يې د انگلستان له هېواد څخه نوي زيلاند ته کډوال(مهاجر) شوي دي. خلک ددې هېواد په ټولو سيمو کې ژوند کوي او د درې مليونو په شاوخواکې يې په شمالي ټاپو او يو ميليون يې په جنوبي ټاپوکې مېشته دي. دنوي زيلاند مهم ښار اوکلند(Auckland) دی چې په هغه کې د نفوسو گڼوالی زيات دی او د يوميليون په شاوخواکې وگړي لري.

د نوي زيلاند پلازمينه د ولينگتن ښار



ولینگټن چې د نوي زیلانډ مرکز دی له ۳۰۰ زرو څخه زیات نفوس لري. نوي زیلانډ یو عصري او پرمخ تللی صنعتي هېواد دی. ددې هېواد زیاتره ځمکې غرنۍ دي او دخاورې زیاته برخه یې په ساحلي جلګو کې کرکیلې ته برابره ده چې په عمومي توګه پکې غنم، اوربشې، جودر او د څارویو لپاره واښه کرل کېږي. د دې هېواد مناسبې آب او هوا، پراخو چمن زارونه او په کرنه کې له نوو فنونو او وسیلو څخه ګټې اخیستنې د کرنې په پرمختګ کې مرسته کړې ده. په دغه هېواد کې کرنه وروسته له مالدارۍ څخه په دویمه درجه کې راځي. د څارویو روزنه، په ځانګړې توګه پسه ددې هېواد په اقتصاد کې ځانګړې اهمیت لري.

طبیعي ښه چاپیریال، په نوي زیلانډ کې مالداري پراخه کړېده.



د دې هېواد غوره کاني توکي فلزات دي چې له هغې جملې څخه سره زر ددې هېواد د سپين پوستو د مهاجرت په لومړيو کلونو کې له مهمو صادراتو څخه و او د ډېرو سکاره هم په دې هېواد کې موندل کيږي.

د نوي زيلاند صنعت د خوراکي توکو د توليد، د کاغذي صنايعو، لرګيو او سيمه ييزو لګښتونو پر بنسټ ولاړ دی چې په هغو کې د سيندونو د اوبو له پراخو منابعو او بريښنا څخه ګټه اخيستل کېږي او په سلوکې ۱۸ ملي عايد جوړوي.

داوبو د بريښنا له قوې څخه ګټه اخيستل



### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې د نوي زيلاند له نقشې، عکسونو او د لوست له متن څخه په ګټې اخيستلو سره، د لوست مهم ټکي راټول کړي اويه ټولګي کې دې بيان کړي.

### پوښتنې

۱ـ نوی زيلاند له څو لويو ټاپوګانو څخه جوړشوی او څه نومېږي؟
۲ـ د نوي زيلاند د نفوسو زيات شمېر په کوم ټاپو کې استوګنه لري؟
۳ـ د نوي زيلاند دغوره کرنيزو، کاني او صنعتي پيداوارو نوم واخلئ.

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

له نقشې څخه په استفادې سره د نوي زيلاند موقعيت د طول البلد او عرض البلد د کرښو په اساس تثبيت او وليکئ.

# انتارکتیکا (جنوبي قطب)




په جنوبي نیمه کره کې د آسترالیا د لویې وچې، د اقیانوسیې د ټاپوګانو او د انتارکتیکا موقعیت

د انتارکتیکا نقشه

ـ انتارکتیکا څرنګه کشف شوه؟

انتارکتیکا هغه لویه وچه ده چې زیاته برخه یې د جنوبي قطب د دایرې په جنوب کې موقعیت لري او د درې سمندرونو، یعنې آرام سمندر، اتلانتیک سمندر او د هند سمندر له خوا چاپېره شوې ده. هغه اوبه چې د انتارکتیکا په شاوخواکې شته دي ځینې پوهان هغه د جنوبي کنګل سمندر په نامه هم یاد وي. انتارکتیکا له آسیا، افریقا، شمالي او جنوبي امریکا څخه وروسته د نړۍ څلورمه لویه وچه ده چې د ۱٤ میلیونو کیلومترو مربع په شاوخواکې مساحت لري.

دا لویه وچه د نړۍ د ډېرو لیرې پرتو او منزوي وچو څخه ده چې د کنګل لویو ټوټو محاصره کړې ده.

له ۲۰۰ کلونو څخه د مخه تصور کېده چې انتارکتیکا د اوسیدو وړ او د ښه اقلیم لرونکې ځمکه ده، خو په ۱۷٦۸ م کال کې د انګلیس د سمندري قواوو یوه افسر د جیمز کوک(James Cook) په نامه وروسته له هغې څخه چې ویې کولای شول په ډېر زیارسره ځان ددې لویې وچې شاوخوا ته ورسوي، خبر یې ورکړ چې حتی یو حیوان هم په دې کنګلونوکې د ژوند د دوام ورکولو توان نه لري. پنځوس کاله وروسته په ۱۸۱۸م کال کې یو امریکایي سمندر ګرځېدونکی د ناتانیل پالمر(Nathaniel Palmer) په نامه بریالی شو چې له جنوبي امریکې (ارجنټاین) څخه د جنوبي قطب (انتارکتیکا) ډېرې نژدې نقطې ته ځان ورسوي.

په ۱۹۱۱م کال کې د دوو اکتشافي ډلو ترمنځ د انتارکتیکا د کشف لپاره یوه مسابقه رامنځ ته شوه چې یو انګلیسي هیأت د انګلستان د سمندري قواوو د یوه افسر په مشرۍ د روبرت فالکن سکات(Robert Falcon

د روالد اموندسن (Roald Amundsn) په مشرۍ د ناروېژي سمندر ګرځېدونکي ډلې په نامه او يو ناروېژي هيأت د سکات (Scott) په نامه په دې سيالۍ کې ګډون وکړ. ددې مسابقې وړونکې ناروېژي ډله وه چې د ۹۹ ورځو مسافرت له تېرولو څخه وروسته د دسمبر په څوارلسمې ورځې په ۱۹۱۱ م کال کې د ۲۹۹۳ کيلومترو د واټن په وهلو د جنوبي قطب نقطې ته ورسېدل او ناريژوي رپانده بيرغ يې هلته په يادګار پرېښود. وروسته کاپيتان سکات د ۱۹۱۲م کال د جنوري د مياشتې په ۱۷ (يوه مياشت وروسته) هغه ځای ته ورسيد. ناروېژي ډله په سلامتۍ سره بېرته راوګرځېده، خو انګليسي ډله په بېرته راتګ کې د واورې او کنګلونو سره مخامخ شوه او ټول يې مړه شول. په هغه ځای کې چې د هغوی جسدونه موندل شوي دي د انتارکتيا د مکتشف په ياد په همدې ځای کې يو څېړنيز مرکز جوړشوی، چې د آن دو (اموندسن ـ سکات) په نوم نومول شوی دی.



د قطبي حيواناتو څخه يو تصوير

د انتارکتيکا طبيعي حالت څرنګه دی؟

د انتارکتيکا په لويه وچه کې څوک نه اوسېږي، لاس يې نه دی خوړلی دا لويه وچه پراخه دښته او هواره نه ده، بلکې جګه سطحه ده چې په کنګل او واورې پوښل شوې ده. د دې لويې وچې په سواحلو او د قطب په مرکزي برخه کې د غرونو ډېرې لړۍ شته دي. انتارکتيکا د ځمکې ډېره لوړه لويه وچه ده، چې منځنی لوړوالی يې د سمندر له سطحې څخه ۱۸۳۰ متره دی.

جنوبي قطب ډېره سړه هوا لري چې په ژمي کې د سانتي ګراد تر منفي ۸۹ درجو پورې رسيږي. هيڅ بوټی په دې لويې وچې کې د لوېيدو او ودې توان نه لري، يوازې د دې لويې وچې په ځينو برخوکې ځنې بوټي لکه (ګل سنګ) شنه کيږي او د جنوبي قطب په شاوخوا اوبوکې د سمندري حيواناتو ځينې ډولونه هم ژوند کوي.

په يوه کوچنۍ برخه کې چې کومې څېړنې د کانونو د کشف لپاره ترسره شوي دي، څرګندوي چې په انتارکتيکا کې د اوسپنې، ډبروسکارو، نفتو، ګازو اونورو کاني موادو زېرمې شته دي، خو د زيات لګښت له امله يې اوس استخراج ته کومه ليوالتيا نشته.

### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي، لومړۍ ډله دې د انتارکتيکا د لويې وچې د کشف په هکله او دويمه ډله دې په دې هکله چې ولې تر اوسه دا لويه وچه د استوګنې وړ نه ده بحث او خبرې اترې وکړې او د خپل بحث پايله دې خپلو ټولګيوالوته وړاندې کړي.

### پوښتنې

١ـ انتارکتيکا په کوم ځای کې موقعيت لري او د کومو سمندرونو په وسيله چاپېره شوې ده؟

٢ـ د انتارکتيکا د کاشفينو نومونه واخلئ.

٣ـ د جنوبي قطب اقليم څرنګه دی؟

٤ـ د انتارکتيکا د لويې وچې د اټکلي کانونو په باره کې معلومات ورکړئ.

### له ټولګي څخه بهر فعاليت:

په يو ډېرشم لوست کې ورکړشوي شکلونه توضيح کړئ او د هغو په هکله خپل نظر په څو کرښو کې وليکئ.

## د دويم څپرکي لنډيز

– د آسترالیا لویه وچه په حقیقت کې یو لوی ټاپو دی چې په جنوبي نیمې کرې کې د آرام سمندر او د هند سمندر په اوبو کې پروت دی.

- کابو پنځوس زره کاله مخکې لومړني خلک آسترالیا ته لاړل. ددې ځمکې اصلي اوسېدونکي خلک د ابورجینالس (Aboriginals) په نامه یادیږي.

- دا لویه وچه په شپاړ سمه او اووه لسمه پېړۍ کې د اروپایانو د سفرونو او زیاتو سمندري کشفیاتو په لړکې کشف شوه. ددې لویې وچې مشهور غرونه گریت دیوای دینگ (Great Dividing) دي چې په ختیځ کې یې له شمال څخه تر سوېل پورې غځېدلې دي او د اوبو مهمې سرچینې هم جوړ وي.

- د آسترالیا ډېر مهم سیند موري (Murray) دی چې درې څانگې لري، نوموړی سیند د دیوای دینگ د غرونو له برخو څخه سرچینه اخلي او د استرالیا لوی خلیج ته توییږي.

- ایر (Eyre) په آسترالیاکې ډېر لوی مالگین جهیل دی، چې د آسترالیا ډېره ژوره نقطه هم په همدې جهیل کې موقعیت لري.

- د استرالیا زیاته برخه تحت استوایي اقلیم او یوه شمالي برخه یې استوایي اقلیم لري. د استرالیا په درو برخوکې کابو دوه برخې وچه وو چې د کرنې وړ نه ده.

- آسترالیا فدرالي دولت دی چې په شپږو ایالتونو او دوو سیمو وېشل شوی دی او مرکز یې د کانبرا ښار دی.

- د آسترالیا زیاتره وگړي اروپایي سپین پوستي عیسوي دي چې په انگلیسي ژبه خبرې کوي.

- آسترالیا یو پر مخ تللی هېواد دی چې زیاتره خلک یې د خدماتو په برخه کې بوخت دي. د دې هېواد غوره صادرات وړۍ، غوښه، غنم، د ډبروسکاره، سره زر او ماشینونه او واردات یې ترانسپورتي وسایل، ماشینونه، د مخابرې وسیلې او پټرولي محصولات دي.

- آسترالیا د حمل او نقل ټول ډولونه او د مواصلاتو پر مختللې وسایل لري.

- اقیانوسیه ډېر ټاپوگان لري چې ډېر لوی ټاپو یې د پاپوا نیو گیني (Papua New Guine) ټاپو دی. ددې ټاپو گانو خلک بېلا بېلې ژبې، دینونه، دودونه او دستورونه لري.

- د اقیانوسیې د ټاپوگانو ډېر مهم کرنیز محصول ناریال دی

- نوی زیلاند د اقیانوسیې له مشهورو هېوادونو څخه دی چې یو عصري او صنعتي پرمخ تللی هېواد دی.

- د انتارکتیکا (سوېلي قطب) په لویه وچه کې څوک نه اوسېږي، لاس یې نه دی خوړلی او په کنگلونو پوښلې ده. ددې لویې وچې مرکزي نقطه د یوې ناروېژي ډلې له خوا په ۱۹۱۱ میلادي کال کې کشف شوه.

- انتارکتیکا د هوا د سړښت او طبیعي نا مناسبو شرایطو له امله تر اوسه د استوگنې وړنه ده او له طبیعي زېرمو څخه یې هم گټه نه اخیستل کېږي.

د اقیانوسیې د ځینو مستقلو هېوادونو د جغرافیایي ځانگړنو جدول

| ګڼه | هېوادونه | مرکز | مساحت په کیلومتر مربع | د وگړو شمیر په ۲۰۰۸م کال کې | د وگړو گڼوالی په یو کیلومتر مربع کې |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | پاپوانیوګیني | پورت مورسي | ٤٦٢٨٤٠ | ٥٩٣١٧٦٤ | ١٢/٨ |
| ۲ | پالائو | کورور | ٤٥٩ | ٢١٠٩٣ | ٤٦ |
| ۳ | تونګا | نوکو الوفا | ٧٤٧ | ١١٩٠٠٩ | ١٥٩/٣ |
| ٤ | تووالو | وایاکو | ٢٤ | ١٠٤٠٠ | ٤٠٧/٧ |
| ٥ | ختیځ تیمور | دیلي | ١٤٨٧٤ | ١١٠٨٧٧٧ | ٧٤/٥ |
| ٦ | نوی زیلاند | ولینگتن | ٢٧٠٥٣٤ | ٤١٧٣٤٦٠ | ١٥/٤ |
| ٧ | ساموا | اپیا | ٢٨٣١ | ٢١٧٠٨٣ | ٧٦/٧ |
| ٨ | د سلیمان ټاپوګان | هونیارا | ٢٨٨٩٦ | ٥٨١٣١٨ | ٢٠/١ |
| ٩ | فیجي | سووا | ١٨٢٧٤ | ٨٥٥٠٠٠ | ٤٦/٧٩ |
| ١٠ | کیریباتي | جنوبي - تاراواي | ٧٢٦ | ١١٠٣٥٦ | ١٥٢ |
| ١١ | د مارشال ټاپوګان | ماجورو | ١٨١ | ٦٣١٧٤ | ٣٤٩ |
| ١٢ | میکرونزیا | پالیکیر | ٧٠٢ | ١٠٧٦٦٥ | ١٥٣ |
| ١٣ | نائورو | یارن | ٢١ | ١٣٧٧٠ | ٦٥٥/٧ |
| ١٤ | وانواتو | ویلا بندر | ١٢١٨٩ | ٢١٥٤٤٦ | ١٧/٧ |

## اصطلاحات

### الف

- **اپارتايد**: د سپينو پوستو او تورو پوستو خلکو سره بېل بېل چلند او تر منځ يې توپير چې له ۱۹٤۸ميلادي کال څخه يې د سوېلي افريقا په هېواد کې قانوني بڼه درلوده.
- **استوايي اقليم**: هغه اقليمي سيمه چې د استوا د کرښې په شاوخوا کې پرته ده او د استوايي باراني ځنګلونو د اقليم او سوانا ساحه په کې شامله ده.
- **اقتصادي جغرافيه**: هغه جغرافيه چې د ډول ډول توکو د توليد، وېش او لګښت په هکله بحث کوي.
- **اورښت (بارنده گي)**: ټولې اوبه، واورې او ږلۍ چې له ورېځو څخه اوري، اورښت ورته ويل کېږي.
- **استوايي ځنګلونه**: د استوايي سيمو ځنګل چې د شمالي عرض البلد له ۷ درجونه د جنوبي عرض البلد تر ۷ درجو پورې شتون لري، د تودې او لندې هوا، او ډېرو بارانونو لرونکی دي.
- **بوميان**: هغه خلك چې د يوې سيمې د لومړنيو اوسېدونکو په توګه پېژندل شوي وي.
- **بشري جغرافيه**: بشري فعاليتونه، د نفوسو او بشري ټولنو جغرافيايي وېش د ژوندانه د چاپېريال په اړه مطالعه کوي.
- **براس (تبخير)**: د مايع د فزيکي حالت بدلون په براس (بخار).
- **توپوګرافي**: توپوګرافي له دوو يوناني کلمو څخه اخيستل شوې يعنې (توپو) د ځای په معنا او (ګرافي) د رسمولو يا تشريح په مفهوم چې د هرې سيمې د طبيعي يا مصنوعي جوړښتونو رسمولو يا ښوولو ته توپوګرافي ويل کيږي.
- **تجارتي بادونه**: د شمالي او جنوبي نيمی کرې، ٥ او ۳۰ درجو عرض البلدونو ترمنځ له شمال ختيځ څخه مخ په جنوب لوېديځ باندې لګيږي، خو په جنوبي نيمې کره کې د هغو لوری له جنوب ختيځ څخه د شمال لوېديځ خواته وي.
- **توريزم**: هغه خلك چې د سفر امکانات لري او د خپل فراغت وخت په يو بل سيمې کې تېروي د سيلانيانو (توريستانو) يا نړۍ ګرځېدونکو په نامه يادېږي. هغه هېوادونه چې ښې توريستيکي سيمې لري او د سيلانيانو د راکښلو سبب ګرځي زياته شتمني لاسته راوړي.
- **تکتونيکي ساحه**: د ځمکې په مخ (قشر) کې يوه ساحه ده چې په هغه ځای کې ډول ډول جوړښتونه لکه لوړې برخې، ټيټې برخې، ګونځې، درزونه، چاودونه او نور جوړ شوي وي.
- **د باراني ځنګلونو د اقليم ساحه**: هغه اقليم چې ټول کال ورسره اورښت مل وي.
- **دبت** (Debit): د اوبو اندازه چې له سيند څخه په يوه ټاکلي وخت کې له يوې ټاکلې نقطې څخه تېرېږي او د سيند د اوبو د حجم د اندازه کولو لپاره ورڅخه استفاده کېږي.
- **د سکي لوبې**: يو ډول ژمنۍ لوبې دي چې له واورو څخه ډکو غرونو کې تر سره کېږي.
- **د ستپ اقليم**: وچ اقليم چې په دوبي کې د لنډې مودې باران لري.
- **د نفوسو کثرت يا ګڼوالی**: په هر کيلومتر مربع کې د استوګنو وګړو اوسط.

- **د سیند خوله یا مصب**: هغه ځای دی چې سیند، سمندرګي یا سمندر ته توییږي او ور سره یو ځای کیږي؟
- **د لتا** (Delta): د سیند په خوله کې د رسوبي موادو یوه سیمه چې د ځمکې هوارېدو او د سیند د څانګه کیدو سبب ګرځي.
- **ژبه**: منظمه غږیزه وسیله ده چې انسان یې د خپلو خلکو سره د اړیکو لپاره کاروي.
- **ستپ**: نیم وچ اقلیم لرونکې برخې چې په هغو کې بوټي او ونې شیندلي او یا لرې لرې لیدل کیږي.
- **سوړ اقلیم**: هغه اقلیمي ساحه چې د توندرا اقلیم، د واورو اقلیم او د لوړو غرونو د اقلیم لرونکې ده.
- **سوداګري (تجارت)**: د محصولاتو او توکو پلورل او پېرودل.
- **سمندري کشفیات**: د بېړۍ په وسیله سمندري سفرونه د ناپېژندل شوو سیمو د کشف لپاره.
- **سیاسي جغرافیه**: د جغرافیې یوه برخه ده چې د هېوادونو د سرحدونو او څلور خواوو، کورنیو او بهرنیو اړیکو، اداري او ټولنیزو تشکیلاتو او داسې نورو په باره کې بحث کوي.
- **صادرات**: بهرنیو هېوادونو ته د پلورلو لپاه د محصولاتو لیږل.
- **صنعت**: د محصولاتو یا توکو د شکل بدلون، په ځانګړې توګه د ماشین په وسیله.
- **طبیعي جغرافیه**: د ځمکې پدیدې او جوړښتونه (عوارض) تر څېړنې لاندې نیسي.
- **کلتور**: ټول دودونه او دستورنه چې د یوې ډلې خلکو له خوا زده شوي وي او په سمبولونو، اتلانو، رواجونو او ارزښتونو باندې پېژندل کیږي.
- **کانال**: د انسان په وسیله د دوو سمندرګیو او یا سمندرونو د ارتباط او د حمل و نقل د آسانتیاوو لپاره د وچې کیندل. کیدای شي چې د دوو سیندونو په منځ کې هم کانال وکیندل شي او دوه سیمې سره ونښلوي.
- **مدیترانه یي اقلیم**: هغه اقلیم دی چې دوبی یې تود او وچ اوژمی یې ملایم او باراني وي.
- **ملي پارک** (National Park): طبیعي با ارزښته تړلې سیمه، چې لږ تر لږه لس زره هکتاره وي او د دولت له خوا یې ساتنه کیږي.
- **مهاجرت**: د خلکو خوځښت او ځای په ځای کیدل د هېواد دننه او یا د سرحداتو څخه بهر. کورني او بهرنی مهاجرتونه د اقتصادي، سیاسي او طبیعي بېلا بېلو عواملو له امله تر سره کیږي.
-**ملي نا خالص عواید**: د ټولو محصولاتو ارزښت دی چې د یوه هېواد په بېلا بېلو برخو کې په یوه کال کې تولیدیږي.
**مواصلاتي جغرافیه**: د جغرافیې یوه څانګه ده چې د وچو، اوبو او هوایي لارو په باره کې بحث کوي.
- **نژاد**: یوه ډله خلك چې د طبیعي، وراثت او اصالت له نظره یو ډول خصوصیات لري، یعنې د قیافې، د ونې جګوالی او ټیټوالی، د سترګو، ویښتانو او پوستکي د رنګ ځانګړنې یې ورته والی ولري.
- **واردات**: په بهرنیو هېوادونو کې د محصولاتو او توکو پېرودل او هېواد ته دننه یې راوړل.
- **وچ اقلیم**: هغه اقلیمي سیمه چې د ستپ اقلیم او صحرایي اقلیم پکې شامل دی.